

داسلام له نظره :

# په افغانی ټولنه کې

# دښځو حقوق

محمد گلاب بشار

۱۳۷۳

د اسلام له نظره :

# په افغاني ټولنه کې د ښځو حقوق




محمد گلاب بشار

۱۳۷۳

## د کتاب پیژندنه

د کتاب نوم : په افغاني ټولنه کې د ښځو حقوق

مؤلف : محمد ګلاب بشار

خپروونکی : د آزاد افغانستان د لیکوالو ټولنه

د چاپ شمیر : ۲۰۰۰

د چاپ ځای : تاپ پرنټرز - پېښور

د چاپ کال : ۱۳۷۳ هش - ۱۹۹۴ ع

د چاپ مهتمم : شهنواز جانباز

کمپوزر : سید حسین پاچا

# فهرست

عنوان | مخ

| عنوان | مخ |
|---|---|
| نفاس | ۷۹ |
| رضاعت او حضانت | ۷۹ |
| نصیحت او تبلیغ | ۸۱ |
| ښځو ته د دین او د ژوند د ضروریاتو ښوونه | ۸٦ |
| د ښځو بیعت | ۸۸ |
| د ښځو پوښتنې | ۹۰ |
| د ښځو علمي مجلس | ۹٤ |
| ښځو ته د لیك او لوست ښودل | ۹۵ |
| ښځو ته د میړه د اطاعت ارزښت او فضیلت ښودل | ۹۵ |
| ښځو ته د میړه د حق ښودل | ۹٦ |
| د غسل ښودل | ۹۷ |
| د ښځې او نارینه د اولاد روزلو مسؤولیت | ۱۰۰ |
| تر څلورو نکاحې ښځو د تعدد حکمت او فلسفه | ۱۰۸ |
| په اسلام کې د ښځو د تعدد په باب د انصاف | |
| د خاوندانو وینا وې | ۱۱۵ |
| د حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم د ښځو د تعدد حکمت | ۱۱۷ |
| تشریعي کلمات | ۱۱۹ |
| سیاسیت حکمت | ۱۲۲ |
| مآخذ او مراجع | ۱۲٦ |

بسم الله الرحمن الرحيم

# اهداء

هغو مسلمانانو خويندو ته چې د پاك قرآن او نبوي احاديثو په رڼا كې ژوند كول او دنيوي او اخروي عزت او كامیابي غواړي .

# هیله

ای د اسلام د مکتب قدرمنې خورې !

نن که څوك ستا د دین د کتاب (پاك قرآن) بیځایه تعبیرونه کوي او تا د بدبختۍ ژورو کندو ته غورځوي نو پورته شه همت وکړه او د پاك قرآن د حقانیت ، کمال او عظمت د ځلانده حقیقت ترمخه د مخالفینو د شبهاتو او اعتراضاتو تپې تیارې د خپل ایمان په رڼا او د میړانې د سترې روحیې په اساس له منځه یوسه او خپل ایماني ثابت دریځ او خپل دیني اسلامي مسؤولیت هیڅ مه هیروه .

« ومن الله التوفیق »

# د مؤلف څو خبرې

درنو لوستونکو !

دغه رساله چې ستاسې په لاس کې ده یوه داسې رساله ده چې موضوعات او مطالب یې د بشریت د تاریخ په مختلفو دورو او مختلفو قومونو کې په کورنیو او ټولنیزو ساحو او محیطونو کې د ښځې د مقام او حیثیت په څرنګوالي اړه لري او هغه داسې چې په نړۍ کې له دغه انساني ممتاز او معزز مخلوق سره د بشریت د تاریخ په افق کې د اسلام د ځلانده ستوري تر راختلو او ښکاره کیدلو پخوا د کورنیو د مشرانو او وارثانو او د حاکمو طبقو او مذهبي حلقو له خوا څرنګه ظالمانه رویه کیدله او دهغې پر انساني کرامت او حقوقو څرنګه تیری کیده او هغه د خپل انساني مقام او ارزښت له حیثه څرنګه له نظره لویدلې او بې ارزښته

مخلوق گڼلی شوی او بیا د اسلام آسماني دین د حق او عدالت د ارزښتونو او د بشر دوستی د ستري روحیې په اساس هغې ته د مظلومیت او محرومیت له سختیو او ترخو څخه خرنګه نجات ورکړ ، د هغې انساني مقام او حیثیت یې په څه شان معزز او حقوق یې په څه ډول محترم وښودل او هغه یې د یو شریف انسان په توګه په ډیرو صفاتو او حالاتو کې د نارینه سره شریکه وګڼله .

اسلام هغه د پیدایښت له وخته ترهغه چې د کورنې موجودیت بنیادي عنصر ګرځي د هغې روزنه یې د مور او پلار او د نورو روزونکو لازمي مسؤولیت ښودلی ، بیا په کورني محیط کې هغه یې د ښځې په عنوان له خپل میړه سره بنیادي رکن ، د مور په لقب د خپل اولاد په باب لومړنی مربی او په ټولنه کې د خپل خلقت او فطرت د مشخصاتو او صفاتو مطابق د اجتماعي ښځینه وو مکلفیتونو او مسؤولیتونو خاونده ګڼلی ده .

همدا راز په دغه رساله کې د هغو ظلمونو یادونه کیږي چې په ننني او اوسني محیرالعقول مادي او تخنیکی عصر کې د مطلقې آزادی په نامه د ابوالهوسو انسانانو له خوا د دغه انساني معزز او شریف مخلوق سره کیږي او د لاقیدی او لاابالی په حالت کې یې هغه د نفساني غریزی د اشباع متاع ګرځولی او د هغې انساني کرامت او عفت او د هغې اجتماعي حیثیت او مقام یې د پښو لاندې کړی او د خپل اولاد له روزنې او د خپلې کورني اداري او انتظام څخه یې غافله ګرځولې ده .

همدا راز په دغه رساله کې د هغو بیځایه انتقادونو ، پوچو تبلیغاتو ځوابونه چې د اسلام غلیمانو د ښځو په باب د دغه آسماني حق دین د نیك تعامل او رویې په باب کړی دي ، د حقیقت په مستندلو دلایلو ورکړ شوی دی او د هیڅ شك او اشتباه ځای یې نه دی پریښی .

د دې لپاره چې د تاریخ په مختلفو دورو او د نړۍ په مختلفو ځایونو کې په مقایسوي شکل او طریقه د ښځې حالت او مقام وښودل شي او دا حقیقت څرګند شي چې هغه کوم دین ، کوم مسلك او کوم مکتب دی چې د ښځې انساني مقام او کرامت ته یې په ښه حیثیت او درنښت کتلي دي او هغه یې په کورني او ټولنیز محیط او ساحه کې د اجتماعي موجودیت اصلي بنیادي رکن او د خورا مهم مؤثر نقش او لوی مسؤولیت خاونده ګڼلې ده نو دا دې د هغې له مقام او حالت څخه هم له اسلام څخه مخکې د نړۍ په مختلفو اولسونو او ځایونو کې او بیا د اسلام د آسماني دین د ترحم او عدالت په مکتب کې ښودل شوي دي ، یادونه کیږي .

۵ - ۹ - ۱۳۷۳

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله رب العالمين والصلوة والسلام على سيد الانبياء والمرسلين وعلى اله واصحابه اجمعين . اما بعد :

# له اسلام څخه مخکې د ښځې حالت

څنګه چې تاریخ شاهد دی ښځه له اسلام څخه مخکې او ترکومه وخته چې په انساني ټولنو کې د هغې په باب د اسلام هدایات او احکام د تطبیق او عملي کیدلو مرحلی ته رسیدلي ، د نړۍ په هرځای او هرګوټ کې د کورنی د مشرانو ، حاکمو طبقو او مذهبی مقامونو د ظلم او ناروا په سبب خپل انساني کرامت او مقام او د ژوند اختیارات او حقوق له لاسه ورکړي وو او د محکومیت ، محرومیت او ذلت ژوند یې کاوه . په کورني او ټولنیز محیط او ساحه کې د خپلو حقوقو او واجباتو په مفهوم نه پوهیدله ، د فکر او عمل له آزادی څخه محرومه وه ، د مال او متاع په شان ورسره بده رویه کیدله او یې د جنسي غریزی له اشباع او خدمت څخه ورسره نور هیڅ انساني او اخلاقي تعلقات او تعاملات نه لیدل

کیدل . حال دا چې د ښځو د جنس لومړنی فرد چې د حضرت آدم ابوالبشر د خلقت په وخت کې چې د هغه ښځه پیدا شوه د هغه سره د اجتماعي ژوند ملګری او مرستیاله او د بشري نسل د پیدایښت او دیرښت مصدر ګرځیدلی ده او د دغو دوارو په ګډ ژوند او ګڼو هلو ځلو د ژوندانه د ضروریاتو د برابریدلو فضا منځته راغلی ده او هر یوه خپل حیثیت او مسؤولیت پیژندلی دی . بیا وروسته همدغه ښځینه د لطافت او ظرافت او د اعزاز او احترام وړ مخلوق دی چې د ژوندانه په مختلفو دورو کې د هغې انساني کرامت او حقوق تر پښو لاندې شوي ، د ژوند او ملکیت اختیار او واك یې سلب شوی او د مظلومیت او محرومیت له سختیو او ترخو سره مخامخه شوی ده :

دا رومیان دي چې د دوی په منځ کې ښځو خپل انساني حیثیت او حقوق له لاسه ورکړي وو او ورسره ظالمانه او وحشیانه رویه کیدله ، بی موجبه په بیګناهی د آسونو په لکیو پوری تړلی کیدلی او آسونو به په ځغاسته ځانو پسی راښکودلی . (۱)

ویل شوي : رومیانو یوې تولنی دا حکم صادر کړی و چې ښځه یو ناولی حیوان دی ، روح او بقا نه لري ، بی له عبادت او خدمت څخه بل څه نشي کولای . باید خوله یې د اوس او لیوني خوړونکي سپی په شان وتړله شي او له خندا او خبرو څخه منعه کړله شي ، ځکه د شیطان دام دی . (۲)

دا یونان او فارسیان دي ، چې د دوی په منځ کې ښځو خپل مقام او آزادي له لاسه ورکړی وه ، حقوقو او انساني کرامت یې کوم ارزښت نه درلود او د انسان په توګه ورته نه کتل کیدل ، د مال او متاع په شان

---

(۱) مقام زن در اسلام وسایر ملتها ص ۵ .

(۲) الاسلام دین الهدایة والاصلاح ص ۲۰۶ - ۲۰۷ .

عرضه کیدله او خرڅیدله . یوازې د خدمت او اولاد روزلو مسؤولیت ور په غاړه و او په خپل مال کې یې د تصرف حق او اختیار نه درلود . (۱)

د یونان لومړی فیلسوف او حکیم سقراط د ښځې په باب داسې ویلي دي :
د ښځې وجود د نړۍ رد بحران او نړیدلو لویه منشأ او سبب دی . ښځه د مسمومې ونې په شان ده چې له د باندې ښکلې ده مگر کله چې مرغی ورڅخه څه وخوري نو سمدلاسه مري او ژوندی نه پاتې کیږي . (۲)

اندروسکی Anderosky د ښځې د شخصیت معنی د یونانیانو له نظره داسې کوي : کیدی شي چې د اور سوځیدلي او مار چیچلي علاج وشي مگر د ښځې د خاصیت او اخلاقو لپاره علاج ممکن نه دی . (۳)

دا د یونانیانو د ارتدکس کلیسا ده چې د ښځې د روح له موجودیت څخه منکره ده . سنگریکوری وایي : تقدس او متبرك هغه سړی دی چې یې ښځې وې او خپله ملکوتي قیافه چې خدای ورکړې ده د جنسي غریزې او شهوت په کثافت سره چټل نه کړي . (٤)

همدا راز په اروپایي هیوادونو کې د ښځې اعتبار او حیثیت له نظره لویدلی و د هغې د انساني کرامت او حقوقو احترام نه کیده ، هغه د شر او گناه مصدر او د شیطان ملگری گڼله کیدله او په خپل مال کې یې د تصرف حق نه درلود ، فلاسفه وو او د کلیسا مقامونو د ښځې په باب مناقشې او مباحثې کولې او ویل به یې چې آیا ښځه یو شی دی او که شخص ؟ آیا ښځه د سړي په شان د انساني روح خاونده ده ؟ آیا ښځه د سړي په شان ژوند کولای شي ؟ (۵)

---

(۱) المرأة فی التشریع الاسلامی ص ۱۲ .

(۲ او ۳ ) مقام زن در اسلام وسایر ملتها ص ۱٦ .

(٤) مقام زن در اسلام وسایر ملتها ص ۱٦ .

(۵) المرأة فی التشریع الاسلامی ص ۱۳ .

هربرت سپنسر په خپل کتاب ( وصف الاجتماع ) کې ويلي دي :
بې شکه ښځې په انګلستان کې د يوولسمې او پنځلسمې پيړيو ترمنځه خرڅيدلې او له دې څخه خورا زيات بد کار دا و چې د يوه بزګر ښځه به تر ٢٤ ساعتونو د يوه معتبر سړي سره وه او له هغه سره به يې د خپلې جنسي غريزې اشباع او تسکين کاوه . (١)

همدا راز په ( ١٥٦٧ ) ميلادي کال د اسکاتليند له پارلمان څخه فيصله صادره شوه او موضوع يې دا وه چې نه ښايي ښځې ته څه حق ورکړ شي او د امريکا په ځينو ځايونو کې داسې خلک موجود وو چې هغو به په مؤقتي توګه له خپلې ښځې سره مبادله کولې او بيا چې به تاکلې موده تيره شوه نو هره ښځه به خپل ميړه ته ستنبدله . (٢)

په مسيحيت ( لاس وهلی مسيحيت ) کې ښځه د ګناه مسؤوله ګڼله کيږي . د پيدايښت په سفر کې راغلي دي :
« هغه ښځه چې تا مانه راکړه چې ما سره وی هغې د ونې له ميوې څخه ميوه راکړه او ما هغه وخوړله » .

مسيحيت بی بی حوا د بشر د ګناهونو مسؤوله ګڼي او همداغه و چې الله خپل زوی ( عيسی ) وليږه څو په دار وځړول شي او په خپلو وينو سره د بشر ګناهونه ووينځي . (٣)
( نعوذ بالله من ذلك الاعتقاد الباطل )

دا د مسيحست د لومړی دوری څېره ده او د همدغه مسيحيت پيروان دي چې په ( ١٧ ) مسيحي پيړی کې د حکماوو مشورتي جرګې په متفق ډول داسې غيرانساني فتوی او فيصله صادره کړه چې :

---

(١) العدالة فی ضوء الاسلام ص ٣٧ .
(٢) العدالة فی ضوء الاسلام ص ٣٧ .
(٣) مقام زن در اسلام وساير ملتها ص ٢١

« ښځه د انساني روح لرونکې نه ده » (۱)

پولس د مسیحیت لومړنی پیشوا وایي :

« پرېږدئ چې د ټولو ربړونو سکوت زده کړئ او زه نشم کولای چې دا تکلیف وزغمم چې ښځه دې تدریس وکړي او یا دې پرخپل مېړه حاکمیت ولري ، بلکې تل دې د سکوت په حالت کې وي ، ځکه لومړی آدم پیدا شو او بیا حوا پیدا شوه . آدم غولول ونکړل ، بلکې وغولید او دا ظلم دی چې د ښځې له خوا وشو » (۲) . حقیقت دا دی چې د مسیحیت د کلیساوو مؤسسان چې د مسیحیانو پلرونه یادېږي ټولو له ښځو څخه ځانونه ساتل او ښځې یې د شیطان له دستګاه څخه ګڼلې او کله به یې د شیطان وسلې ګڼلې او ویل به یې :

« د ښځې آواز د مار آواز دی او ښځه د لړم په شان ده چې تل نیش وهلو ته تیاره ده .

دا یې هم ویل :

« ښځه د دیو او پیري نیزه په لاس لري او دغه نیزه د شیطان وسله ده چې له هغې څخه کار اخلي او په ارواحو باندې مسلط ګرځي » (۳)

همدا راز ویلي یې :

« ښځه د شیطان دروازه ، د ناآرامی لاره ، د لړم نیش ، د سولې دښمن او خورا خطري ځیروونکې ځناوره ده » (٤)

همدا راز د یهودو په نزد د آدم د تېرایستلو سبب ګڼل کېدله ځکه همدغه ښځه وه چې له جنت څخه آدم او د هغه اولاده یې بهر ته ایستلې ده او په دې کار سره د دوی په نظر کې د بشر د بدبختۍ اصلي عامل او د شیطان دروازه ګڼله کېدله .

---

(۱ - ۲) مقام زن در اسلام وسایر ملتها ص ۵ .

(۳ - ٤ ) مقام زن در اسلام وسایر ملتها ص ۲۵ .

په یهودي دین کې ویل شوي دي :

« ګناه له ښځې څخه پیل شوی ده او همدغه ښځه ده چې مونږ د دې په سبب له مرګ سره مخامخ کیږو » .

همدغه دین دی چې ښځه د ټولو شرارتونو مسؤوله ګڼي او هغه د کور یو بی حیثیته او بی ارزښته مخلوق ګڼي . د حیض په وخت کې له هغې سره ناسته او خوراک نه کوي او له خپلو ځانونو څخه یې ګوښه ګرځوي او نه یې پریږدي چې پر کوم لوښي لاس ووهي او لوښی ناولی کړي . (۱)

همدا راز د بابلیانو د حمورابی د شریعت په نظر کې ښځه د څارویو حیثیت درلوده او هغه داسې چې چا به د یو شخص لور ووژله نو د هغې په مقابل کې به د قاتل لور وژل کیدله .

## ښځه د بودایی دین په نظر کې :

بودایی دین وایي : « د ښځې په ملګرتیا کې هیڅ نجات ( نیروانا ) نه موندل کیږي . د دغه دین اصلي هدف د جنسي تمایلاتو او مقتضیاتو وژل دي او په دغه لاره کې جهاد کول په لازمي توګه بی سځیتوب دی ( بودایی قانون - لومړی برخه - ۲ مخ )

مشهور مؤرخ - وسترمارک Wester Mark ویلي دي :

« ښځې د بودایی دین له نظره د شیطان غولوونکې او سرکښه کوونکې دامونه دي چې په خورا خطرناکه شکل لیدل کیږي او نارینه د هغوی په دامونو کې نښلي » (۲)

## ښځه د هندوانو د مذهب له نظره :

ښځه د هندوانو په منځ کې د هیڅ حق او اختیار خاونده نه وه ، ،

---

(۱ - ۲) مقام زن در اسلام وسایر ملتها ص ۲۵ - ۲۷ .

پلار او میره له میراث ځخه محرومه وه ، بلکې د هندوییزم له مسلك د رسم او رواج له مخې د خپل مړ میړه سره په یوځای په اور کې سوځول کیدله او که به کومه ښځه دستی د مقرراتو په خلاف خپل ځان د خپل مړ میړه سره یوځای په اور کې نه سوځوه نو پرهغې باندې به لعنت ویل کیده او په بدی سره به یادیدله .

په هندوانو کې د نیوگ Niyog عقیده موجوده وه او هغه داسی : که کومی ښځې به زوی نه درلود هغې به کولای شو چې یو بل سړي سره ملاسته وکړي او په دې توگه زوی ور په برخه شي . (١)

اندرا Andra پیغلی پروفیسری په خپل کتاب ( په مهابهاراتا کې د ښځې وضعیت ) کې ویلی دي : « له ښځې څخه خورا زیات گنهکار نشته ، ښځه د سوځولو ده او د تیغ د تیره خولی ور ده » .

د هندوانو په مذهب چې د مانو Manu په کتاب کې راغلي دي : باید ښځه هیڅ وخت د آزادی په هڅه کې ونه اوسي او نه کوم کار په خپله خوښه وکړي .

## ښځه د چین د تمدن په وخت :

د چین په پخوانیو مذهبي کتابونو کې ښځې په دردوونکو اویو یادیدلی چې د نیکبختی او شتمنی وینځل کوي .

د چین په ادبیاتو کې ښځه له سړي څخه پسته او ټیټه معرفي او پیژندل شوی ده او د هیڅ حق لرونکی نه وه او د هیڅ حق خاونده نه وه . سړي کولای شول چې د هغې حیثیت سلب کړي او یا یې خرڅه کړي او چې کله به ښځه کونډه شوله نو هغه به د مال په شان گڼل کیدله او هیڅ حق به یې نه درلود چې له بل شخص سره نکاح وکړي ، مگر میړه

(١) مقام زن در اسلام وسایر ملتها ص ١٧ .

حق درلود چې هغه ژوندۍ ښخه کړي .

## ښځه د جاهلیت د وخت په عربی محیط کې : (۱)

ویل شوي چې ښځه د جاهلیت د وخت په عربی محیط کې د خپل ولادت او کوچنیتوب په مرحله کې د پلار د قساوت ، وحشت او ظلم د لاسه د زوم د شرم او عار او د فقر او تنگسی له ویرې ژوندۍ ښخیدله او کومه ښځه چې به د ژوندۍ ښخیدلو څخه خوندي پاتی شوله او بیا چې به دغه ښځه یو سړي ته په نکاح شوه نو بیا به د همدغې ښځې سره چې میړه به یې مړ شو د ډیر ظلم او ناروا رویه کیدله ، له میراث څخه به محرومه او د بل میړه د کولو اختیار به یې نه درلود . په ډول ډول د عیاشی متاع گرځولی شوی وه ، پر انساني کرامت او شرافت یې تیری کیده ، بل داسې کسان وو چې د خپلې خوښې په اساس یې ډیری ښځې په نکاح کولی او د اندازی حد به یې معلوم نه و .

امرئ القیس د عربو ډیر لوی شاعر چې شهزاده او د ملك والی هم و ، ده د خپلې ترور د لور ( عنیزی ) او له نورو ښځو سره چې د بی شرمی کارونه کړي وو هغه یې په خپله لامیه قصیده کې ټول په ډیر افتخار په تفصیل سره لیکلي او بیان کړی دي .

له ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دی چې که څه هم په جاهلیت کې خلکو په ښکاره زنا روا نه گڼله ، لیکن په پټه او پرده کې یې زنا روا گڼله او دا به یې هم ویل چې په ښکاره زنا کول رذالت او بې شرمي ده مگر په پرده کې باك نه لري .

عبدالله بن أبی چې په مدینه کې د منافقانو مشر او رئیس و او د نبوي هجرت څخه وړاندی ټولو د ده لپاره یو تاج جوړ کړی و او هغه به

---

(۱) سید سلیمان ندوی : سیرة النبی (ص) ، ج ٤ ص ۲۲۰ – ۲۲٤ .

يې خپل پاچا گاڼه دغه نومړې دوې ښځې درلودې چې د يوې نوم ( سيکته ) او د بلې نوم ( اميمه ) و او ده به خپلې دغه دواړه ښځې په زناکارۍ مجبورولې . (۱)

سربيره پر دې د جاهليت په عصر کې د خلکو په منځ کې د فاسدې نکاح ډېر اقسام موجود وو چې د هغو له جملې څخه ځينې په دې ډول وو :

که يو زړه ور او پياوړی نارينه به پيدا شو نو ځينو خلکو به هغه ته خپله ښځه ليرله څو له هغې سره يوځای شي او ورڅخه کوم هلك پيدا شي او د هغه په شان زړه ور او پياوړی وي .

بله طريقه داسې وه چې څو تنه نارينه به چې د هغو شمير به د لسو تنو څخه نه ډېريده يوې ښځې ته تلل او ټول به له هغې سره يوځای شول نو هرکله چې به دغه ښځه حامله شوه او کوچنی به ورڅخه پيدا شو نو دغې ښځې به دغه ټول کسان راوبلل او په هغو کې به يې يوه ته وويل چې دا کوچنی ستا دی نو هغه به د دغه کوچني له قبلولو څخه بله هيڅ چاره نه درلودله او کوچنی به د دغه شخص.اولاد وګڼل شو .

د فاسدې نکاح دريم ډول دا و چې ښځو به د فحشاګرۍ بيرغ پورته کاوه او په بازارونو کې به کسيناستلې او د زنا لپاره هغوی ته نارينه راتلل او بيا چې له دغو ښځو څخه د يوې هلك پيدا شو نو هغې به هلك ته قيافه پيژندونکی راوغوښت او چې قيافه پيژندونکي به د هلك شکل او قيافه وکتله نو وبه يې ويل چې دا د فلانی نطفه ده نو ښځې به هغه شخص راوغوښت او ورته به يې وويل : دا ستا بچی دی . (۲)

بل په خلکو کې يوه عارضي نکاح هم موجوده وه او هغه داسې وه چې خلکو به تر ټاکلې مودې پورې ښځې په نکاح اخيستلې او د دغې

(۱) تفسير طبري د مصر چاپ ، ۵ ج ص ۱۳ د ( محصنات غيرمسافحات ) د آيت لاندې .
(۲) په صحيح بخاري کې دا درې واړه طريقې په تفصيل سره يادې شوې دي .

مودې له تیریدلو وروسته به یې هغوی ته اجرت ورکاوه او هغوی به یې پریښودلې . (۱)

## د کعبې د طواف په وخت د ښځو د بې حیایی حالت :

د حج په ورځو کې قریشو ( که نارینه وو او که ښځې ) له کعبې څخه بربنده طوافونه کول او ښځو به خلکو ته داسې وینا کوله :

« څومره به ښه وای که چا مونږ ته دومره ټوکر راکړی وای چې مونږ په هغه سره خپل عورت پټ کړی وای » .

نو بیا به دوی دغه شعر ووایه :

الیوم یبدو بعضه اوکله فما بدا منه فلا أحله

نن د بدن لږ څه یا ټول ښکاره کیږي او کوم چې ښکاره دی هغه روا نه ګڼم

صحیح مسلم په باب التفسیر کې د حضرت عبدالله بن عباس څخه یو روایت نقل کړی دی او هغه داسې دی چې :

دوی به د لمبلو په وخت کې خپل ځانونه نه پټول او نه به یې د کوم شي څخه ځانونه پناه کول ، بلکې لوڅ لغړ به یې په ډاګه لمبل . (۲)

## له ښځو سره د نارینه وو ظلمونه

## له میراث څخه د ښځو محرومیدل :

د ښځو حالت ډیر خراب و ، د مړي له میراث څخه دوی ته هیڅ برخه نه ورکول کیدله ، په عربو کې دا یوه عقیده وه چې میراث به د هغه چا حق و چې هغه به توره پورته کولای شوه .

په دې اساس به کوچنیو هلکانو ته هم په میراث کې برخه نه ورکول کیدله او د میراث څخه به محروم ګڼل کیدل .

---

(۱) دغه دول نکاح متعه نومیږي او دغه مؤقته نکاح په دایمي نکاح له منځه تللې .

(۲) النسائي باب الاستتار عندالغسل .

## د ښځو طلاق :

د طلاق لپاره کومه موده او عدت نه وه ، نو تر کومې مودې پورې چې به د مېړه خوښه وه ترهغې به ښځه نه د خپل مېړه سره اوسېدلای شوه او نه به يې د کوم بل چا سره نکاح کولای شوه .

## د نکاحي ښځو حد معلوم نه و :

کله چې غيلان بن سلمه الثقفی اسلام راوړ نو په دغه وخت کې د هغه لس ښځې وی بيا ورته ووېل شول چې له دغو ښځو څخه څلور ښځې ځانته پرېږده اومتباقي طلاقی کړه . همدا راز نورو کسانو چې له څلورو اضافه ښځې لرودلې او اسلام به يې ومانه نو هغه به هم زياتې ښځې طلاقې کړې .

## ښځې د حيض په وخت کې :

خلکو به ښځې د حيض په وخت کې له ځان څخه بېلولې او چا به له هغوی سره ګډون ، خوراک او څښاک نه کاوه .

## ښځې د کونډې توب په وخت کې :

کله چې به يوه ښځه کونډه شوه نو هغه به له کور څخه د باندې په يوه کوچنی تنګه تياره خونه کې اوسېدله ، د اغوستلو لپاره به ورته ډېر زاړه او خراب کالي ورکول کېدل ، خوشبويی به يې نه شوه استعمالولی او بيا چې به يوکال وروسته تېر شو نو ورته به يوه وزه يا يو خر راوستل کېده او هغې به ور پورې ځان ومسود ، بيا به له تنګی اوتياري خونې څخه راووتله او يوه پچه به ورته ورکول کېدله او د دې پچې په غورځولو به د دی د سوګ او غم موده پای ته ورسېده او بيرته به يې خپل پخوانی ژوند

پیل کړي .

د جاهلیت په دوره کې دا هم وو چې کله به ښځه د خپل میړه له مړینې وروسته وارثانو ته پاتې شوله نو وارثانو به پرهغې باندې د خپل مالکیت او حاکمیت څادر واچاوه ، که د چا به خوښه وه نو له هغې سره به یې نکاح وکړه او که به یې خوښه نه وه نو هغه به یې معلقه پرېښووله یعنی هغه به یې نه په نکاح اخیستله او نه به یې بل چا ته په نکاح ورکوله او د مال او متاع په شان به یې حیثیت درلود .

## د ځجونو ژوندي خښیدل :

دا هم د جاهلیت له بدو آثارو څخه و چې ځجونی به د مېلو بیرحمو او بی عاطفی پلرونو له لاسه د زوم له شرم او یا د فقر او لوږې له وېرې ژوندی خښیدلې او د هغوی پر معصوم وجود او ژوند به تیری کیده .

که بیا چیرې د معصومو ځجونو د ژوندي خښیدلو له عادت سره سره کومه ځجلی ژوندی پاتې شوه او هغه به پیغله او واده شوله نو د خپلې کورنی د مشر د ظلم او ناروا په سبب به د خپل ژوندانه د شریك ( میړه ) په غوره کولو کې هیڅ واك او اختیار نه درلود او د هغې پر شخصیت او ژوند به لوبې کیدلی .

## د لور په پیدا کیدلو له کوره نفرت کول :

دا ناپوه پلار دی چې د لور په پیدا کیدلو سره به ډیر متأثره او پرمخ باندې به یې د غم او خفگان توره پرده وغوړیدله ، پراخه تنده به یې غوځجه شوله او د دنیا ارته صحنه به ورباندی تنگه شوله .

ابوحمزه یو رئیس و چې کوم وخت د ده په کور کې لور پیدا شوه نو له خپل کور څخه یې لاس واخیست ، د ده د دې کار په سبب د ده ښځې

خپلې لور ته د للو للو په ډول دا شعرونه ویل :

مالی لأبی حمزة لایأتینا    یبیت فی البیت اللتی تلینا
غضبان ألاّ نلد البنینا    تالله ما ذاك بأیدینا
ونحن کالزرع لزارعینا (۱)    ینبت ما قد زرعوه فینا

په ابوحمزه څه وشو چې مونږ ته نه راځي
او په هغه کور کې چې زمونږ ترڅنګه دی شپه سبا کوي
په دې قهر دی چې مونږ زامن نه زیږوو
په الله سوګند چې دا زمونږ په اختیار کې نه دی
او مونږ د ځمکې په شان د خپلو کروندګرو لپاره یو
چې څه یې په مونږ کې کرلي هماغه زرغونیږي

لنډه دا چې ښځه له اسلام نه مخکې د خلکو د وحشت او بربریت ، ظلم او ناروا له امله د یوه انساني معزز مخلوق په توګه نه پیژندله کیده ، د هغې پر انساني کرامت تیری کیده او پر ژوند او حقوقو یې لوبې کیدلې ، بلکې د بدبختۍ رمز ګڼل کیدله او د مال او متاع په شان ورسره رویه کیدله هماغه و چې تل یې د نجات او خلاصون لارې څارلې او د روڼ سباوون انتظار یې کاوه .

(۱) سلیمان ندوی : سیرة النبی ، ج ٤ ص ۲۲٤ .

# د ښځې په باب د اسلام دریځ او سلوك

هغه وخت چې د آسمانی ادیانو په لړ کې اسلام په خپل جامعیت او کمال تر قیامته د ټولو نړۍ والو لپاره د هدایت او سعادت یوازینی دین منځ ته راغی نو دغه آسماني حق دین په خپل لومړني اعلان سره د عبودیت او انقیاد سر کیښودل یې د کایناتو د خالق واحد لاشریك ذات د عظمت او جلال په مقابل کې وښود او باطل افکار او عقاید او د ظلم او ناروا ټول عملونه یې وغندل او د حق او عدالت فضا یې منځ ته راوړه .

دا د همدغه آسماني دین د عدالت او ترحم شعار دی چې د انسان له وچولي ښځه یې د باطل عبودیت گرد ، له سترگو ښځه یې د غفلت پردې ، له اورو ښځه یې د گناه دروند پیتی او له پښو او لاسونو ښځه یې د محکومیت او ذلت زنځیرونه لیرې کړل او هغه یې یوازې د کایناتو

د خالق بنده او د هغه د هدایاتو او احکامو په مقابل کې د تسلیم او انقیاد خاوند وښودل.

همدغه د اسلام آسماني حق دین دی چې ښځه پر ښځې باندې د انسانې کرامت او عفت او د ملکیت او واك له حیثه ظلمونه کیدل او د مال او متاع په شان ورسره رویه کیدله نو دغه مظلوم او محروم معزز مخلوق او موجود یې له ذلت او سپکاوی څخه د عزت او احترام ، د حیوانیت د وحشت ژوند څخه د انسانیت حقیقي ژوند ته ، او له اسارت او محکومیت څخه د آزادی او اختیار مقام ته ورسوله او هغه یې د نارینه په شان د حقوقو او واجباتو خاونده وګڼله او له نارینه وو سره یې د خلقت او ژوند په اصولو او کارونو کې شریکه وښودله .

باید وویل شي چې په کومه درجه او معیار اسلام د ښځې د انساني کرامت او مقام ښه حیثیت او د هغې د عزت او اکرام ښه شان ښودلی او هغې ته یې د ژوند په مختلفو ساحو کې انسانی حقوق ورکړي دي بل هیڅ دین ، هیڅ مسلك او هیڅ مکتب نه دي ورکړي .

همدغه د اسلام آسماني دین دی چې د خپلې بشر دوستی او صله رحمی د روحیې په لرلو اوښودلو سره ښځه یې د خپل موجودیت او ژوند له ابتدایی حالت د صغارت د معصومیت په مرحله کې له وحشیانه او ظالمانه ژوندي خښولو څخه ژغورلی او کومو پلرونو چې د وحشت او بربریت د ځنګلي عادت او قانون له مخې خپلې لونې د زومتوب له شرمه او یا د لوږې او فقر له ویرې ژوندی خښولې هغوی یې د لوی مسؤولیت او ګناه خاوندان ښودلي دي او د هغو دغه راز وحشیانه او ظالمانه کارونه یې غندلي دي . الله تعالی د دوی له دغه بد عادت او حالت څخه داسې یادونه کوي او وایي :

« واذا بشر احدهم بالانثی ظلّ وجهه مسوداً وهو کظیم . یتواری من القوم من سوء ما بشر به ایمسکه علی هونٍ ام یدسّه فی التراب الا سآء

مايحكمون » . (۱)

او کله چې د دغو ( کافرانو ) یو تن ته په لور ( د هغې په پیدا کیدلو ) سره خبر ورکړ شي نو د ده مخ ( له ډیره غمه ) تك تور وګرځي حال دا چې ( خپلې ښځې ته چې ولې دی لور زیږولې ) له قهره ډك وي ، د هغه شي د ناخوښي له سببه چې په هغه سره خبر ورکړ شوی له قومه پټ ګرځي . آیا هغه ( لور ) سره د سپکوالی وساتی او که یې په خاورو کې ( ژوندی ) ومندي ، خبر شئ چې بد دی هغه چې حکم کوي دوی ( کافران چې الله ته د عیبونو نسبت کوي ) .

همد راز الله تعالی د قیامت په ورځ د لور د ژوندی ښښولو له مسؤولیت څخه داسې خبر ورکوي او وایي :

« واذالموئودة سئلت . بای ذنب قتلت » (۲)

او کله چې له ژوندی ښښې کړی نجلې څخه پوښتنه وشي ( داسې ) چې په کومی ګناه سره وژلی شوی ده ( دا نجلی ) .

بالمقابل هغه چا چې د خپلې لور موجودیت او ژوند محترم وګاڼه او د هغې سره یې د ترحم او عدالت رویه وښودله د اسلام پیغمبر علیه الصلوة والسلام د دغه راز شخص د ښه عاقبت داسې ښودنه کوي او وایی :

« من کانت له انثی فلم یأدها ولم یهنها ولم یؤثر ولده علیها یعنی الذکور أدخله الله الجنّة » . (۳)

یعنی د چا چې یوه لور یا یوه خور وي او هغه یې ژوندی ښښه نه کړه او هغه یې سپکه نه کړه او پرهغې باندې یې خپل زوی ته ترجیح ورنه کړه نو الله به هغه په جنت کې داخل کړي .

(۱) النحل - ۵۹ .

(۲) التکویر - ۸ - ۹ .

(۳) رواه ابوداود عن ابن عباس رضی الله عنهما ، مشکوة المصابیح ۴۲۳ مخ .

همدا راز د ښځو په باب همدغه د اسلام د ترحم او عدالت تعامل او سلوك دی چې د هغې په باب يې د جاهليت د عصر ظالمانه رويه او عمل غندلی او د هغوی د حقوقو د احترام او له هغوی سره د ښه معاشرت د کولو توصيه کړی ده .

بايد ووېل شي چې په جاهليت کې د ښځو په باب د خلکو رويه داسی وه :

« کله چې به څوك مړ کيده نو د دې مړي ښځه به د علاتی زوی يا ورور يا د بل کوم وارث له لوری بندی ساتله کيدله . بيا به يې که زړه غوښتل له هغې سره به يې خپله نکاح تړله ، يا به يې هماغسی بی نکاح په خپل کور کې ساتله ، يا به يې له بل چا سره نکاح تړله او د هغې ټول مهر يا څه برخه به يې ترې اخيستله ، يا به يې تر مرګه پورې هلته بندی ساتله او د هغې د مال به وارث کيده » . (١)

دا و له کونډې ښځې سره د جاهليت د عصر ظالمانه رويه او دا دې د هغې په باب د الله تعالی حکم چې مسلمانانو ته شوی او له هغو څخه د دغه راز ښځو د حقوقو د احترام او له هغوی سره د ښه معاشرت د کولو غوښتنه شوی ده .

« يايّها الذين امنوا لايحلّ لکم ان ترثو النّساء کرهاً ولاتعضلوهنّ لتذهبوا ببعض ما اتيتموهنّ الاّ ان يّاتين بفاحشةٍ مّبينةٍ وعاشروهنّ بالمعروف فان کرهتموهنّ فعسی ان تکرهوا شيئاً ويجعل الله فيه خيراً کثيراً . وان اردتم استبدال زوج مکان زوج واتيتم احدهن قنطاراً فلاتاخذوا منه شيئًا تاخذونه بهتاناً واثماً مبيناً . وکيف تاخذونه وقد افضی بعضکم الی بعضٍ واخذن منکم ميثاقاً غليظاً » . (٢)

ای مؤمنانو ! تاسی ته روا نه دي چې تاسی ښځې په زوره په ميراث

---

(١) کابلی پښتو تفسير لومړنی ټنحه جزئی ټوك ٤٧٦ .

(٢) النساء : ١٩ - ٢١ .

واخلئ ، او تاسی دوی مه منع کوئ ( له میړه کولو ، یا پر دوی تکلیف مه کوئ ) د دې لپاره چې تاسې ځینی د هغه مال چې تاسی دوی ته ( په مهر کی ) ورکړی یوسی ( تری واخلئ ) مګر دا چې دوی راتګ وکړي په قبیح کار ( لکه نافرمانی یا زنا ) ښکاره . او ګوزاره کوئ تاسې له دوی سره په نیکه طریقه ، پس که دوی ( ښځی ) ستاسی خوښی نه وي نو ( صبر وکړئ ) ښایی چې تاسې به یو شی نه خوښوئ حال دا چې الله به په دی شي کې ډیر خیر ګرځولی وي ( الله به ستاسی لپاره په کې دینی یا دنیوي کومه ګټه ایښی وي نو تاسی ته تحمل په کار دی او د بدخوي سره بدخویی نه ښایی چې وکړله شي ) او که تاسی اراده وکړئ د بدلولو د یوی ښځی په ځای د بلې ښځی ( چې یوه طلاقه بله په نکاح کړئ ) حال دا چې تاسې یوی ته د دوی ډیر مال ( په مهر کې ) ورکړی نو تاسی له هغه ( مال ) څخه هیڅ شی ( بیرته ) مه اخلئ ، آیا تاسی دغه ( مال ) اخلئ په ناحقه ( په دروا‌غو بی موجبه ) او په ګناه ( ظلم ) ښکاره . او څرنګه به تاسی هغه ( مال ) اخلئ حال دا چې په تحقیق سره ځینی له تاسی ځینو ( نورو ) ته ( د مباشرت یعنی جماع په طریقه ) رسیدلی دی او اخیستی دوی ( ښځو ) له تاسی څخه عهد کلك « کله چې ښځه او نارینه له نکاح څخه وروسته سره یوځای شي نو د دغه کار په بدل کې ټول مهر په میړه باندی واجبیږي » .

همدغه د ښځی په باب د اسلام د پیغمبر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ترحم او همدردي ده چې مسلمانان یې د کافرانو د ښځو له وژلو څخه منع کړي دي .

له رباح بن ربیع څخه روایت دی وایي :

« کنا مع رسول الله صلی الله علیه وسلم فی غزوة فرأی الناس مجتمعین علی شیئ فبعث رجلاً فقال أنظر علی ما اجتمع هؤلاء فجاء فقال علی

امرأة قتيل فقال ما كانت هذه لتقاتل قال وعلى المقدمة خالد بن الوليد فبعث رجلاً فقال قل لخالد لاتقتلن امرأةً ولاعسيفاً » . (١)

« مونږ په یوه غزا کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وو هغه خلك وليدل چې په يو شي باندې راغونډ شوي دي نو هغه يو سړی وليږه او ورته يې وويل چې ووينه چې دغه کسان پر څه شي راغونډ شوي دي نو سړي راغی او وې ويل : پر يوې ښځې شوي سحې باندې . نو هغه ( الهی پیغمبر ) وويل : دا داسې ښځه نه وه چې وجنګيږي . هغه ويل : د لښکر په سر کې خالد بن الوليد دی ، نو الهی پیغمبر يو سړی وليږه او وې ويل : خالد ته ووايه چې ښځه او مريی مه وژنه .

همدا راز بخاري له ابن عمر ( رضی الله تعالی عنهما ) څخه روايت کوي چې هغه ويلي وو :

« وجدت امرأة مقتولة فی بعض مغازی رسول الله صلی الله علیه وسلم فنهی رسول الله صلی الله علیه وسلم عن قتل النساء والصبيان » . (٢)

د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حینو غزاګانو کې يوه وژلې شوې ښځه بیامونډله شوه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د ښځو او کوچنيانو له وژلو څخه منعه وکړه .

همدغه د اسلام رحمة للعالمین پیغمبر د حقی لاری لوی داعي او د اسلام د مکتب ستر معلم دی چې خپلو مجاهدو ملګرو ته د دښمنانو د ښځو په باب د نه وژلو داسې توصیه کوي او وایی :

« انطلقوا بسم الله وبالله وعلى ملة رسول الله لاتقتلوا شيخاً فانياً ولاطفلاً ولاصغيراً ولاامرأةً ولاتغلوا وضموا غنائمكم واصلحوا واحسنوا ان الله يحب المحسنين » . (٣)

---

(١) سنن ابی داود ؛ ج ١ ، ص ٦ .
(٢) روا البخاری عن ابن عمر رضی الله عنهما ؛ ج ١ ، ص ٤٢٣ .
(٣) رواه ابوداود ؛ ج ١ ، ص ٣٥٩ .

په نامه د الله په ( نصرت ) د الله او د رسول الله (ص) په دين روان شئ ، شيخ فاني ، طفل ، صغير او ښځه مه وژنئ او په ( غنيمت کي ) خيانت مه کوئ او خپل غنايم ټول کړئ او اصلاح وکړئ اونيکي وکړئ بی شکه الله نيکي کوونکی خوښوي .

همدغه د اسلام مقدس دين دی چې کوم وخت نارينه کومه ښځه په نکاح کړي او په نکاح سره خپل کورنی موجوديت منځ ته راوړي نوميړه ته توصيه کوي چې د خپلی ښځی د حقوقو پوره احترام او مراعات وکړي ، له هغې سره ښه ژوند او نيکه رويه وکړي او څو چې ژوندی او وسه يې وي له هغې سره د خپل ژوند ترآخره د نکاح په عهد ټينګ پاتي شي او په ذمه واريو يې په ښه توګه وفا وکړي او که بيا له هغې سره څه اختلاف اونزاع پيدا شي او د کورنی موجوديت يې د خطر او ضرر سره مخامخ کوي نو د روغی جوړی لاره دی غوره کړي او د پيدا شوي اختلاف او نزاع عامل دی په مصلحانه طريقه له منځه يوسي .

همدغه د اسلام آسماني حق دين دی چې کوم وخت ښځه د اولاد په پيدا کيدلو سره د مور د لقب خاونده شي او بيا دغه مور خپل اولاد په اسلامي تعليماتو او آدابو سره روزي نو هغه يې د لوړ مقام ، ښه حيثيت او د ډيرو حقوقو خاونده ښوولی ده او پر اولاد باندی يې د هغې احترام او خدمت لازم ګرځولی دی .

دا د دغه آسماني دين کتاب عظيم الشان قرآن دی چې د الله تعالی د حقوقو ترڅنګه پر اولاد باندې له پلار سره يوځای د مور حقوق ښيی او له هغی سره د نيکی کولو غوښتنه کوي :

« وقضی ربك الا تعبدوا الا اياه وبالوالدين احسانا » (۱)

او ستا رب حکم کړی چې يوازی د هغه ( الله ) عبادت کوئ او د

---

(۱) بنی اسرآئيل - ۲۳ .

والدینو ( مور او پلار ) سره نیکي کوئ .

همدغه د مور په صفت د ښځې ډېر حق او لوړ مقام دی چې حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم د پلار په نسبت د مور ( چې د اولاد په باب د حمل ، ولادت او تربیت ) ډېر تکالیف ګالي دری حقه او د پلار چې د ژوند ضروریات یې برابروي یو حق ښودلی دی .

له ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی وایي :

« قال رجل یارسول الله من احق بحسن صحابتی قال امك ، قال ثم من قال امك ، قال ثم من قال امك ، قال ثم من قال ابوك » (۱)

یو سړي وویل : ای د الله رسوله ! څوك زما د نیك مصاحبت ډېر مستحق دی ؟ الهی پیغمبر (ص) وویل ستا مور ، سړي وویل : بیا څوك ؟ الهی پیغمبر (ص) وویل : ستا مور . سړي وویل : بیا څوك ؟ الهی پیغمبر (ص) وویل : ستا مور . سړي وویل : بیا څوك ؟ الهی پیغمبر وویل : ستا پلار .

بل له ابی امامه څخه روایت دی چې یو سړي وویل :

« یا رسول الله ما حق الوالدین علی ولدهما »

ای د الله رسوله ! د والدینو (مور او پلار) حق پر اولاد باندی څه دی ؟

الهی پیغمبر (ص) وویل : « هما جنتك ونارك » هغه دواړه ستا جنت او ستا اور دی . یعنی که تا د دواړو خدمت وکړ او د هغو حقوق دی ادا کړل ، نو جنت به درکړ شي او که هغه دواړه دی وځورول او د هغو حقوق دی ادا نه کړل نو د دوزخ عذاب به ووینې .

همدغه د مور په صفت د ښځې لوړ مقام او ډېر حق دی چې کوم وخت یو سړی د غزا د مشورې لپاره حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته راځي نو الهی پیغمبر (ص) ورته د مور د خدمت توصیه کوي :

---

(۱) رواه البخاری ومسلم - مشکوة المصابیح ، ۴۱۸ .

« عن معاوية بن جاهمة أن جاهمة جاء إلى النبى صلى الله عليه وسلم فقال يارسول الله أردت أن أغزو وقدجئت أستشيرك فقال هل لك من أم قال نعم قال فالزمها فان الجنة عند رجلها » . (١)

له معاويه بن جاهمه څخه روايت دى چې جاهمه نبى صلى الله عليه وسلم ته راغى نو وې ويل : اى د الله رسوله ! ما اراده كړى چې غزا وكړم او زه راغلم چې له تا څخه مشوره واخلم نوالهى پيغمبر (ص) وويل : د هغې ملازمت وكړه نو بيشكه جنت د هغى پښتو سره دى . (٢)

همدغه د مور لوړ مقام او ډير حق دى چې حضرت پيغمبر صلى الله عليه وسلم د ميندو د عاق كولو او د لوڼو د ژوندى ښخولو حرمت بښودلى دى .

له مغيرة رضى الله عنه څخه روايت دى وايې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ويلي دي :

« ان الله حرم عليكم عقوق الامهات ووأد البنات ومنعَ وهات وكره لكم قيل وقال وكثرة السؤال واضاعة المال » . (٣)

بيشكه الله پرتاسې د ميندو عاقول ( ازارول ) او د لوڼو ژوندي ښخول ، او منع كول او غوښتل ( بخل او سوال ) منع كړى او ستاسى لپاره يې قيل وقال او ډير پوښتل او د مال ضايع كول بده ګڼلى ده .

همدغه د مور په صفت د ښځى لوړ مقام او اعزازي فضيلت دى چې حضرت پيغمبر صلى الله عليه وسلم د خپلې رضاعى مور احترام كړى او له هغې سره يې ښه رويه كړى ده .

له ابوالطفيل څخه روايت دى وايى :

« رأيت النبى صلى الله عليه وسلم يقسم لحماً بالجعرانة إذ أقبلت امرأة

---

(١) رواه ابن ماجة عن ابى امامة رضى الله عنه : مشكوة المصابيح ، ٤٢١ .

(٢) رواه احمد والنسائى والبيهقى فى شعب الايمان : مشكوة المصابيح ، ٤٢١ .

(٣) رواه البخارى مسلم - مشكوة المصابيح ٤١٩ .

حتى دنت إلى النبى صلى الله عليه وسلم فبسط لها رداءه فجلست عليه فقلت من هى فقال هى أمه التى ارضعته » . (۱)

ما نبی صلی الله علیه وسلم ولید چې په جعرانه کې یې غوښه ویشله ، په دغه وخت یوه ښځه راغله تر دی چې نبی صلی الله علیه وسلم ته نژدی شوه هغه ورته خپل ځادر خپور کړ نو هغه ورباندی کښیناستله نو ما وویل : دا څوك ده ؟ نو وی ویل : دا د ده هغه مور ده چې شیدی یې ورکړي دي .

په المواهب اللدنية کې راغلی دي چې د هغه ( پیغمبر صلی الله علیه وسلم ) مور حلیمه بنت ابی ذویب ده چې د هوازن د قبیلی وه ، همدغه وه چې هغې ته یې شیدی ورکړی او د هغه رضاعت یې پوره کړی دی او هغه د حنین په ورځ ورته راغلی او هغه ورته دریدلی او خپل ځادر یې ورته غوړولی دی او هغه ورباندی کښیناستلی ده (۲)

همدغه د اسلام د پیغمبر صلی الله علیه وسلم ترحم او صله رحمی ده چې د کونډې ښځې او مسکین سره نیکی کوونکی یې د ښه مقام او فضیلت خاوند ښودلی دی او د هغه په باب یې داسې ویلی دي :

« الساعی على الارملة والمسكين كالساعى فى سبيل الله وأحبه قال كالقائم لايفتر وكالصائم لايفطر » . (۳)

پر کونډې او مسکین باندې سعی کوونکی ( سرپرستی کوونکی ) لکه فی سبیل الله سعی کوونکی دی او په هغه گومان کوم چې ویلی یې دي لکه د ( شپې په عبادت ) ولاړ چې نه کمزوری کیږي او لکه روژتی چې افطار نه کوي ( روژه نه ماتوي ) .

---

(۱) رواه بوداود - مشکوة المصابيح ۴۲۰ .

(۲) د مشکوة المصابیح د ۵۲۰ مخ ۵ حاشیه .

(۳) رواه البخاری ومسلم عن ابی هریرة رضی الله عنه ؛ مشکوة المصابیح ۴۲۲ .

همدغه د اسلام د ترحم او قدر کولو رویه ده چې کوم مسلمان د خپلو لوڼو یا خپلو خویندو سرپرستی کوي او هغوی ته اسلامي عقیده ، اسلامی اعمال او اسلامي آداب ښیی او له هغوی سره د د شفقت او ترحم رویه کوي هغه ته یې د جنت زیری ورکړی او هغه یې د ښه مقام او عزت خاوند ښودلی دی .

دا د اسلام پیغمبر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دی چې په یوه حدیث کې یې د یتیم سره د ښیګڼی د کولو له یادونی وروسته د نجونو او خویندو د سرپرستی او تادیب د فضیلت په باب داسې ویلی دی :

« ومن عال ثلاث بنات او مثلهن من الاخوات فأدبهن ورحمهن حتی یغنیهم الله أوجب الله له الجنة . فقال رجلٌ یارسول الله او اثنتین قال او اثنتین حتی لو قالوا او واحدة لقال واحدة » . (۱)

او څوک چې د دریو لوڼو یا د دوی په شان د دریو خویندو سرپرستی وکړي ، هغوی ته ادب وښیی او پر هغوی باندې مهرباني وکړي ترهغه چې الله دوی غنیانی ( په مال یا په میړه ) کړي الله به ده ته جنت واجب کړي نو یو سړي وویل : ای د الله رسوله ! که دوی وي ؟ نو الهی پیغمبر (ص) وویل : دوی هم . تر دې چې که دوی ویلای وی : که یوه وي ؟ نو الهی پیغمبر به خامخا ویلای وی : یوه هم .

همدا راز له انس رضی الله عنه څخه روایت دی وایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلی دي :

« من عال جاریتین حتی تبلغا جآء یوم القیامة أنا وهو کذا » (۲)

څوک چې د دوه نجونو سرپرستی وکړي تر دې چې دواړه ( بلوغ یا نکاح ) ته ورسیږي نو د قیامت په ورځ زه او هغه به داسې راشو ( یعنی

---

(۱) رواه فی شرح السنة عن ابن عباس رضی الله عنهما ؛ مشکوة المصابیح ۴۲۳ .

(۲) رواه مسلم ؛ مشکوة المصابیح ۴۲۱ .

ځنګه چې د لاس ګوتې پیوسته دي همداسې به زه او هغه هم اوسو ).

همدغه د اسلام له نظره د میړه په غوره کولو کې د ښځې د آزادی او اختیار د حق مراعات کول دي چې کله یوه ښځه چې خنساءَ نومیدله او پلار ( جزام ) یې د هغې له خوښې میړه ته ورکړی وه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغله او خپله موضوع یې ورته عرض کړه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغې نکاح رد کړه . ( رواه البخاری عن خنساء بنت الجزام ؛ مشکوة المصابیح ، ۲۷۰ )

بل روایت شوی چې یوې ښځې خپله لور په خوښه یې په نکاح ورکړه کله چې اولیاء یې راغلل نو هغو د ښځې سره مخاصمت وکړ او علی رضی الله عنه ته یې موضوع عرض کړه نو هغه د ښځې دغه کار صحیح وګاڼه . ( الاختیار لتعلیل المختار ؛ ج ۳ ، ص ۹۱ )

همدا راز یوه پیغله نجلی حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته راغله او ورته یې داسې عرض وکړ :

« یانبی الله إن أبی زوّجنی ابنَ أخیه لیرفع به خسیسته وانا له کارهة »

ای د الله نبی بیشکه پلار خپل وراره ته په نکاح ورکړی یمه څو په دی سره د هغې پستی لوړه کړي او زه د هغه خوښوونکی نه یمه .

الهی پیغمبر نجلی ته وویل : « أجیزی ما صنع ابوك » څه چې ستا پلار کړي درست یې وګڼه . نجلی وویل : « لارغبة لی فیما صنع ابی » هغه څه چې می پلار کړي ورته رغبت نه لرم یعنې خوښ می نه دی نو الهی پیغمبر وویل : « فاذهبی فانکحی من شئت » ولاړه شه ، هرڅوك چې ستا خوښ وي ورسره نکاح وکړه . نجلی وویل :

« قد اجزت ما صنع أبی ولکن اردت أن اعلم النساء أن لیس للآباء من الأمر شیئً » .

ما د خپل پلار کړه ومانه ولکن ما وغوښتل چې زه ښځې په دی

رپوهوم چی پلرونو ته د خپلو لوڼو د ورکولو حق او اختیار نشته . (۱)

همدا راز له عبدالله بن عباس ( رضی الله عنهما ) څخه روایت دی وایي چي یوه پیغله رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغله ورته یې یادونه وکړه چي هغه مکرهه ( مجبوره ) وه نو پیغمبر صلی الله علیه وسلم هغه مخیره وګرځوله . (۲)

همدغه ښځه ده چي حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم د میړه په باب د هغي د نظریی او موافقی ارزښت او ضرورت ښودلي دی او هغه داسي : که کونډه یا مطلقه وي او د هغي سره د میړه خِلوت او مقاربت شوی وي نو موافقه به یې په صریحي لهجی سره وي او که پیغله وه او معلومه ده چي پر پیغلی حیا غالبه وي نو سکوت یې کافی دی .

بخاري او مسلم په دغه باب له ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت کړی هغه وایی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلی دي :

« لاتنكح الأيم حتى تستأمر ولاتنكح البكر حتى تستأذن قالوا يارسول الله : وكيف إذنها قال أن تسكت » (۳)

کونډه یا مطلقه ښځه ( چي میړه سره یې یو ځای شپه سبا کړي وي ) ترهغه په نکاح نه ورکوله کیږي ترهغه چي په صراحت سره ورڅخه طلب د امر وشي ( ورته د نکاح خبره وشي او هغه په خوله خپله موافقه څرګنده کړي ) او پیغله ترهغه په نکاح نه ورکوله کیږي ترهغه چي ورڅخه د اذن طلب وشي او اذن یې سکوت دی .

دلته د دي خبري یادونه ضروري ده او هغه دا چي آیا د ښځی نکاح بی د ولی له اذن څخه روا ده او که څنګه ؟

---

(۱) الزواج الاسلامی : ۷۱ - الاختيار لتعليل المختار : ج ۳ ، ص ۹۱ .

(۲) د دی روایت ابوداود کری دی : مشکوة المصابیح ۲۷۱ .

(۳) مشکوة المصابیح ۲۷۰ .

دلته دوه صورته یا دوه حالته دي :

یو دا چې که چیرې ښځه اصیله ، عاقله او بالغه وه او خپل نفس یې یو نارینه ته په نکاح ورکړ او یا دا چې په وکالت او ولایت سره یې کوه بله ښځه په نکاح ورکړه یا دا چې د خپل نفس لپاره یې وکیل ونیو چې په نکاح یې ورکړي یا بل چا په نکاح ورکړه او هغې خپله موافقه وښودله نو نکاح یې صحیحه ده . او د امام ابو حنیفه ، زفر او حسن ( رحمهم الله ) او په ظاهر روایت د امام ابویوسف ( رحمه الله ) قول دی . او امام احمد هم د امام ابوحنیفه قول ته چې یوازی د ولي په اذن سره یې نکاح جایزه ګڼله رجوع کړی ده او دا هغه وخت و ، چې له مړینی څخه یې اوه ورځی مخکې و . ویل شوي چې یوه ښځه امام محمد رحمه الله ته له مړینی څخه یې دری ورځی مخکې راغله او ورته یې وویل : زه ولی لرم او هغه ما په نکاح نه ورکوي مګر هغه وخت چې له ما څخه ډیر مال واخلي نو امام محمد (رح) ورته وویل : « اذهبی فزوجی نفسك » ورشه او خپل ځان په نکاح ورکړه . (۱)

دا چې امام ابوحنیفه ( رحمه الله ) د ښځی اختیار ته اعتبار ورکړی دلیل یې دغه قرآنی آیتونه دي :

« حتی تنکح زوجاً غیره » ( البقرة - ۲۳۰ )

ترهغه چې بل میړه په نکاح کړی .

« فاذا بلغن اجلهن فلاجناح علیکم فیما فعلن فی انفسهن بالمعروف » ( البقرة - ۲۳٤ )

نوکله چې دوی د خپل عدت مودی ته ورسیږي نو پرتاسې باندې په هغه کار کې چې دوی یې په ښه توګه ( د شرعی اصولو سره سم ) کوي هیڅ ګناه نشته .

---

(۱) الاختیار لتعلیل المختار ؛ ج ۳ ، ص ۹۱ .

په دغو آیتونو کې د نکاح او د هغې د فعل نسبت ښځو ته شوی او دا د نکاح په باب د هغو د اختیار او حق د ثبوت دلیل دی . او چې ښځه د خپل سیال سره نکاح وکړي نو هغې د خپل ځان په باب په ښه طریقه عمل کړی دی او په دغه باب د هغې پر اولیاوو باندې څه گناه نشته . بل د ښځې د نکاح اختیار او حق په هغو احادیثو کې چې ترمخه ذکر شوی هم ښودل شوی دی .

هو ! د ښځې د نکاح په باب د هغې د ولی اذن او موافقه هم شته او هغه داسې که ښځه د یوه داسې نارینه سره نکاح وغواړي چې د هغه د دیانت او اخلاقو په باب د ښځې اولیاء انتقاد لري او خوښ یې نه وي او سیال یې هم نه وي نو بیا اولیاء یې حق لري چې د خپل ولایت او صلاحیت له مخې د هغې د نکاح مخه ونیسي او رده یې کړي .

دا باید هم وویل شي او هغه دا چې که د ښځې ولی ښځه یو داسې سړي ته په نکاح ورکوي چې د هغه په دیانت او اخلاقو کې عیب وي او ښځه له هغه سره گوزاره نشي کولای نو په دغه حالت کې ښځه حق لري چې د دغه راز سړي سره نکاح ونه کړي او د نکاح په باب له خپل اختیار او واك څخه استفاده وکړي او ولي نشي کولای چې ښځه په جبر او اکراه په نکاح ورکړي .

دا چې نکاح نه کیږي ، مگر د ولی په اذن سره او په دغه باب د ( لانکاح الا بولی ) په حدیث سره چې روایت یې احمد ، ترمذی ، ابوداود او ابن ماجة کړی ؛ استناد شوی نو د دغه حدیث په باب د احنافو جواب دا دی :

چې دا په هغه صورت کې چې ښځه عاقله او بالغه نه وي او په خپل خیر او مصلحت نه پوهیږي .

بل دا چې د دغه حدیث په باب له ابوالعباس المروزی څخه روایت

شوی چې داسې یې ویلی دي :

« سمعت یحی بن معین یقول : ثلاثة احادیث لم تثبت عن النبی علیه الصلاة والسلام : کل مسکر حرام ؛ ومن مسّ ذکره فلیتوضأ ؛ ولانکاح الا بولی وشاهدی عدل » . ( الاختیار لتعلیل المختار ؛ ج ۳ ، ص ۹۱ )

پر دې باندې احمد بن حنبل او اسحاق بن راهویه هم خپل توافق ښودلی دی په هرحال خورا ښه خبره دا ده چې باید په نکاح کې د ښځې او د اولیاوو یې موافقه موجوده وي څو د دواړو خواوو ترمنځه د خفګان بد اثر ونه لیدل شي ، هو ! که ښځه عاقله او بالغه وه نو ولی دی د هغې خوښې ته وګوري او که ولی د ښځې د خیر او مصلحت غوښتونکی و نو د ده د نظر مراعات دی وشي .

لنډه دا چې اسلام د میړه په غوره کولو د ښځې خوښې او موافقې ته په ډیر ارزښت او اعتبار کتلي دي او هغه نکاح چې د ښځې او د هغې د ولی او همدا راز د ناکح په خوښې او موافقې سره وي هغه یې د دواړو خواوو په خیر اومصلحت ښودلې ده .

مګر نن ورځ د نړۍ په زیاترو ځایونو اوکورنیو کې د ښځو اوناریننوو په باب د افراط او تفریط متضاد حالات موجود دي او دواړه حالته د انساني افرادو او ټولنو لپاره د روحي تشویش ، ناآرامی او بدو عواقبو سبب کیږي .

## ۱ - د تفریط حالت :

په کومو کورنیو کې چې ښځه د پلار اونورو اولیاوو په نزد د مال او متاع په شان حیثیت لري او د میړه په باب د هغې اختیار او موافقې ته نه کتل کیږي او نه د دې ادراك او تشخیص کیږي چې کوم سړي ته ښځه په نکاح ورکوله کیږي هغه د څنګه عقیدې ، د څه عمل او د کوم ځلق او سلوك خاوند دی او یوازې د سړي مادي اړخ او دنیوي عزت او

مقام ته اعتبار ورکول کیږي نو دغه راز نکاح پر ښځی ظلم کول او د هغی پر ژوند لوبی کول دي او اسلام دغه راز نکاح چې پکی د ښځی خوښي او موافقه مراعات نشي د خیر او مصلحت نکاح نه ده ګڼلی .

## ۲ - د افراط حالت :

څنګه چې د نړۍ په زیاترو هیوادونو او اولسونو کې لیدل کیږي د یو زلمي چې له کومی پیغلی سره د نکاح خبره شي نو دواړه مخکی له دی چې دواړه د نکاح د عقد او عهد په اساس سره میړه او ښځه شي نو په دې منظور چې یو د بل د اخلاقو او د ژوند له طریقی او کیفیت څخه خبر او سره اشنا شي نو دواړه په لاقیدی او لاابالی سره هر چیرته او هروخت چې وغواړي چکری وهي ، کباریو ته جي او د سینمایی فلمونو تماشا کوي او دا په داسې حال کې چې د دواړو شهوانی غریزه د زیات قوت او تحریك په حالت کې وي او دواړه د ښځی د کورنی او د حکومتي پولیسی او قضایی مقامونو د نظارت او مراقبت لاندې نه وي نو د واقعیت او انصاف له مخې ووایاست چې تاسې به څه ګومان کوئ چې دا دواړه به د لاقیدی او لاابالی په حالت کې په خپلو منځو کې څه عمل کوي ؟! آیا د ښځی انساني کرامت او عفت به خوندي پاتی شي ؟ آیا بیا دغه ښځه چې د خپل ملګري ښځه شي نو بل کوم سړی به وي چې د هغې نکاح ته زړه ښه کړي او دواړه سره ښځه او میړه شي البته د هغې نکاح ته به هغه سړی زړه ښه کړي چې هغه هم د اخلاقی فساد او دنائت (پستی) خاوند او د لاقیدی او لاابالی د ژوند خوښوونکی وي .

الله تعالی ویلی دي :

« الخبيثات للخبيثين والخبيثون للخبيثات » (۱)

---

(۱) النور - ۲٦ .

خبیثی ښځې د خبیثو نارینه و لپاره او خبیث نارینه د خبیثو ښځو لپاره دي . بل دا څرګند واقعیت دی چې کوم زلمی په لاقیدی او لاابالی سره پردیو پیغلو سره ناسته او ولاړه کوي او د عیاشی کارونه کوي دغه راز فاسد الاخلاق او دنیء الطبیعة زلمی به څرنګه په دې فکر او هڅه کې وي چې د مشروعی نکاحی له لارې خپل عفت ، انساني کرامت او ژوند خوندي کړي او خپل کورنی موجودیت د ټولنې صالحه او بنیادي خسته وګرځوي ، بلکې تل به عیاشی کوي او د هرې بیګانه پیغلی او ښځی سره چې یې اشنایی وشي د هغې پر عفت او ناموس به تیری کوي .

راغلو دی ته چې د افراط او تفریط ترمنځه حالت هغه د اعتدال حالت دی او هغه د میړه او ښځی دواړو په ګټه دی او اسلام د همدغه اعتدالي حالت غوښتونکی دی یعنی همدغه آسمانی دین دی چې د نکاح په باب نه د ښځی نظریه او موافقه بی ارزښته او بی اعتباره ګڼي او نه د دی حالت غوښتونکی دی چې ښځه د میړه د غوره کولو په غرض د نکاح له موافقی او عقد څخه مخکی د نامحرمو سړیو سره په لاقیدی او لاابالی سره چکری وهي او خپل انساني کرامت او عفت ، خپل ژوند او حیثیت د عیاشی له خطر سره مخامخ کړي .

# نکاح او د هغې حکمت

د خلق او تکوین په عالم کې زوجیت - جُفتوالی - د الله تعالی د سُننو څخه یو سُنت دی او دغه زوجیت په ټولو کایناتو او موجوداتو کې که عالم الانسان ، یا عالم الحیوان ، یا عالم الحشرات یا عالم النبات او داسې نور دي موجودیت لري تر دې چې د زوجیت د عام قانون مصداق د علمي پرمختګونو او انکشافي څیړنو له مخې د اتوم په ذره باندې واقعیت پیدا کړي او هغه خوب او خیال چې د اتوم تجزیه یې محال او ناممکنه ګڼله دغه اتوم تجزیه شو او په کې پروتون Protone او د الیکترون Electron منفی ذرات چې دواړه سره د زوجیت د صفت او حالت لرونکی دي کشف شول او د کایناتو او موجوداتو د زوجیت د عام قانون او نظام د پیژندلو په ساحه کی پرمختګ وشو . همدغه د

کاېناتو او موجوداتو په منځکې د زوجيت د حقيقت او راز موجوديت دی چی الله تعالی په عظيم الشان قرآن کې ورڅخه د ( ومن کل شيئ خلقنا زوجين لعلکم تذکرون ). الذاريات - ٤٩ او د ( سبحن الذی خلق الازواج کلها مما تنبت الارض ومن انفسهم ومما لايعلمون ) يس - ٣٤ په مبارکو آيتونو او داسې نورو کې يادونه کړی ده .

دلته چې د بحث موضوع د انساني نوعی د نارينه او ښځی ترمنځه ازدواج دی اسلامی شريعت دغه ازدواج د نکاح په عقد سره ښودلی دی او دغه ازدواج د انساني افرادو د ژوند د قانون ، نظام او حکمت تقاضا او د الهی پيغمبرانوله سُننو څخه دی .

الله تعالی له دغه حقيقت څخه داسې يادونه کړی ده :

« ولقد ارسلنا رسلاً من قبلك وجعلنا لهم ازواجاً وذريةً » الرعد - ٣٨ .

او خامخا په تحقيق مونږ پخوا له تا رسولان ليږلي وو او مونږ هغو ته ښځی او اولادونه ورکړی وو .

همدا راز الله تعالی د ميړه او ښځی د کورنی موجوديت او اجتماعي ژوند د سلامتيا او دوام لپاره د دواړو ازدواج په محبت ، ترحم او ښه معاشرت کرځولی دی .

« ومن ايته ان خلق لكم من انفسكم ازواجاً لتسكنوا اليها وجعل بينكم مودة ورحمة ان فی ذلك لايت لقوم يتفكرون » الروم ٢١ .

او ځينی له نسو ( د قدرت ) د دغه ( الله ) دا دي چې پيدا کړي يې دي تاسې ته له نفسونو ( ځانونو ) ستاسی ښځی ( جوړه ) چې مايل شی دوی ته ( او مطمئن اوسی ) او کرځولی ده ستاسی په منځ کې دوستی او مهربانی بيشکه په دغه ( پيدا کولو د مودت او رحمت په منځ د ازواجو ) کې خامخا ډيری نښی د قدرت دي لپاره د هغه ( قوم ) چې فکر کوي د الله په صنع کی .

الله تعالی نکاح د ډیرو حکمتونو وسیله ښودلی چې د هغې له حکمتونو څخه ځینی دا دي :

## ۱ - اولاد :

الله تعالی نکاح د اولاد د پیدا کیدلو وسیله گرځولی او خپلو بنده گانو ته یې لارښوونه کړی چې د نکاح له لاری د اولاد غوښتنه وکړي ځکه همدغه اولاد دی چې په هغو سره د انسان نسبی سلسله د ژوند او تاریخ په سیر کې جریان پیدا کوي او د هغه مادي او معنوي ذخایر او مفاخر په امانت سره همدغه اولاد ته منتقل کیږي .

الله تعالی ویلی دي :

« فالان باشروهن وابتغوا ماکتب الله لکم » البقرة - ۱۷۸

پس اوس د هغوی ( خپلو ښځو ) سره مباشرت وکړئ او د هغه څه چې الله تاسې ته لیکلي ( په لوح محفوظ کې ئې مقدر کړی دی ) غوښتنه وکړئ .

له معقل بن یسار څخه روایت دی وایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلی دي :

« تزوجوا الودود الولود فإنی مکاثر بکم الأمم » رواه ابوداود والنسائی

یعنی تاسې هغه ښځه په نکاح کړئ چې ډیر محبت کوونکی ډیره زیږوونکی وي نو بی شکه زه ستاسی په ډیرښت پر نورو ملونو باندی ویاړونکی یم .

۲ - دا د نکاح له حکمتونو څخه دی چې نارینه او ښځه په نکاح کولو سره له فحشا او زنا او د هغې له ضرري او خطري ناروغیو او بدو عواقبو څخه ساتل کیږي .

له عبدالله بن مسعود ( رضی الله عنه ) څخه روایت دی وایی چې

رسول الله صلى الله عليه وسلم ويلى دي :

« يا معشر الشباب من استطاع منكم الباءة فليتزوج فأنه أغض للبصر وأحصن للفرج ومن لم يستطع فعليه بالصوم فأنه له وجاء » متفق عليه

اى د زلميانو ډلګيه ! څوك چې له تاسې څخه د نكاح توان لري نو واده دى وكړي نو بيشكه واده د سترګى لپاره خورا زيات پټوونكى او د فرج لپاره خورا زيات ساتونكى دى او څوك چې ونه كړى شي نو هغه دى روژه ونيسي . نو بى شكه روژه د هغه لپاره خصى كيدل دي ( يعنى شهوت ماتوونكى دى ) .

همدا راز له انس رضى الله عنه څخه روايت دى وايې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ويلى دي :

« اذا تزوج العبد فقد استكمل نصف الدين فليتق الله فـى النصف الباقى » رواه البيهقى فى شعب الايمان

كله چې بنده واده وكړي نو په تحقيق نيم دين يې بشپړ كړ نو په پاتى دين كې دى له الله څخه وويرېږي .

٣ - دا د نكاح له حكمتونو څخه دى چې په ټولنه كې د نكاح له لارى د هرچا ناموس او ابرو خوندي ګرځي ، د شر او فساد ، ظلم او ناروا مخنيوى كيږي او د خلكو ترمنځه د حقوقو او د انساني كرامت د احترام دوستى او نيك معاشرت فضا منځ ته راځي .

٤ - دا د نكاح له حكمتونو څخه دى چې د نارينه او ښځى په نكاح سره كورنى موجوديت منځ ته راځي او د كورنيو موجوديت د ټولنى د جوړيدلو لپاره ، لكه بنيادي خستى ګرځي او د كورنيو ښه توب او سلامتيا سبب كيږي او همدغه حقيقت دى چې حضرت پيغمبر صلى الله عليه وسلم د ښى كورنى موجوديت د متدينو او صالحو ښځو په نكاح كولو سره ښودلى دى .

## د نکاح په باب د نارینه او ښځي د دیانت او تقوی ارزښت او اعتبار

دا د اسلام پیغمبر دی که ده له یوی خوا صالح نارینه ته د لور ، یا خور یا د کورنی د کومی بلی ښځي په نکاح ورکول یاد کړي دي همدا راز دغه الهی پیغمبر نارینه وو ته د دیانت او تقوی لرونکو ښځو د نکاح هڅونه کړی ده . دا چې الهی پیغمبر د دیانت او تقوی سړي ته ښځه په نکاح ورکول له مصلحت څخه ګڼلی نو په دغه باب یې داسی ویلي دي :

« اذا خطب الیکم من ترضون دینه وخلقه فزوجوه أن لاتفعلوه تك فتنة وفسادٌ عریض » (۱)

کله چې له تاسی څخه یو څوك چې د هغه دین او اخلاق مو خوښ وي په نکاح سره ښځه وغواړئ نو ښځه په نکاح ورکړئ او که دا ونه کړئ نو په ځمکه کي به فتنه او پراخه فساد وي .

---

(۱) رواه الترمذی عن ابی هریرة رضی الله عنه – مشکوة المصابیح ۲٦۷ .

نو هغه سړی چې د ښه دیانت خاوند وي هغه د خپلې ښځې د حقوقو پوره مراعات کوي او تل له هغې سره ښه ګوزاره او نیکه رویه کوي .

ویل شوي :

حسن بن علی ( رضی الله عنهما ) ته یو سړی راغی او دغه سړي له هغه څخه پوښتنه وکړه چې خپله لور چا ته په نکاح کړي . نو هغه ورته وویل :

« زوجها من التقی إن أحبها أکرمها وإن أبغضها لم یظلمها »

هغه متقی ته په نکاح ورکړه ځکه که هغه ورته ګرانه وي نو عزت به یې وکړي او که بده یې وایسي نو پری به ظلم نه کوي .

بل ویل شوي دي :

« من زوج ابنته من فاسق فقد قطع رحمها »

چا چې فاسق ( سړي ) ته خپله لور په نکاح ورکړه نو هغه د خپلې لور صله رحمی پری کړه . ځکه د سړي لور د هغه د صله رحمی ټینګه کړی ده او هغه د ډیر ترحم او ډیری ښیګڼی وړ ده نو د هغې په حق کې کمی کول لوی ظلم دی .

همدا راز الهی پیغمبر چې د نارینه دیانت ته ډیر ارزښت او اعتبار ورکړی دی او هغه ته یې د ښځې نکاح کول له مصلت څخه ګڼلی دی . همدا راز دغه الهی پیغمبر د متدینی او صالحی ښځې د نکاح کولو هڅونه کړی ده . نو ښایی چې ښځه یوازی د هغې د ښکلا یا یوازی د هغې د نسب او حسب او یا یوازی د هغې د مالی مادي شتمنی له حیثه په نکاح وانه خیستله شي ځکه ښځه چې دیانت ونه لري او بیا له دغی سره یوازی د ښایست ، یا د حسب او نسب او یاد مالي مادي شتمنی له امله نکاح وشي نو دغه راز نکاح به د سړي په خیر او مصلحت ونه اوسي او د بدو عواقبو او نتایجو سبب ونه ګرځي .

هو ، که ښځو د دیانت له حیثه په نکاح شي نو یقیني ده چې متدینه ښځه به د خپل میړه د حقوقو او له هغه سره د ښې ګوزارې پوره مراعات وکړي او د کورنی چارو د ښه تدبیر او انتظام او د اولاد د روزنی له مسؤولیت څخه به هیڅ غافله نشي . همدغه د ښځې د دیانت اوتقوی صلاح او ښه توب دی چې حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم د دنیا خورا ښه متاع ګڼلې ده .

« الدنیا کلها متاعٌ وخیر متاع الدنیا المرأة الصالحة » (۱)

دنیا ټوله متاع ده او د دنیا خورا ښه متاع صالحه ښځه ده .

همدغه د ښځې د دیانت فضیلت او ښه توب دی چې حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم د دغه راز ښځې د نکاح په باب هڅونه کړې ده او د نورو ښځو نکاح یې چې یوازې د مال ، یا د حسب او یا د ښایست له سببه وي ګټوره نه ده ښودلې .

له ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دی وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلي دي : « تنکح المرأة لأربع : لمالها ولحسبها ولجمالها ولدینها فاظفر بذات الدین تربت یداك » رواه البخاری ومسلم .

ښځه د څلورو غرضونو له امله په نکاح کیږي : یو د مال لپاره یې ، بل د حسب لپاره یې ، بل د ښایست له امله یې او بل د دین لپاره یې نو دد ین پر حستنی بریالی شه ( که داسې ونه کړې ) لاسونه دې په خاورو سپیره شه . (۲)

( دلته دا دعاء د انکار اوعتاب په حیث ده چې باید داسې ونشي )

دلته له حدیث څخه دغه مطلب مراد دی چې ښایي نارینه د نکاح کولو په وخت کې د ښځې دیانت او تقوی ته نظر وکړي او د هغې مال ،

(۱) رواه مسلم عن عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما - مشکوة المصابیح ۲۶۷ .

(۲) رواه البخاری ومسلم عن ابی هریرة رضی الله عنه - مشکوة المصابیح ۲۶۷ .

حسب او ښایست چې دیانت ونه لري اعتبار ورنه کړي او که نه نو خامخا به له پښیمانۍ او زیان سره مخامخ شي .

حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم د صالحې ښځې داسې یادونه کوي او وایی :

« ما استفاد المؤمن بعد تقوی الله خیراً له من زوجة صالحة إن أمرها أطاعته وإن نظر إلیها سرته وإن أقسم علیها أبرته وإن غاب عنها نصحته فی نفسها وماله » رواه ابن ماجة عن ابی امامة رضی الله عنه ؛ مشکوة - ۲٦٨

مؤمن د الله له تقوی ځخه وروسته له صالحې ښځې ځخه بل هیڅ ښه شی حاصلای نشي که ورته امر وکړي اطاعت یې کوي ، او که ورته نظر وکړي خوشحاله یې کړي ، او که ورباندی سوګند وکړي نو د غه سوګند ترسره کړي او که غایب شي نو د خپل ځان او د هغه مال خیر غوښتنه وکړي ( یعنې ځنګه چې ښځه یې ده خپل ځان له زنا وساتي او هم یې د مال پاملرنه وکړي ) .

همدا راز دا د اسلام لوی پیغمبر دی چې تل یې د الله تعالی له هدایاتو اطاعت کاوه ، د خپلې لور ( فاطمة رضی الله عنها ) لپاره د دین ، تقوی ، ایمان او شجاعت خاوند حضرت علي بن ابی طالب د میړه په حیث غوره کوي او د خپلې دغې لور مهر ( ٤٠٠ ) درهمه ټاکي او بیا د دغې بی بی د واده سامان یو یمنی ځادر ، یو توشك ( چې پوس یې د حیوان پوستکی او په کې د خُرما پاڼې وی ) د اوبو یو مشك ، دوې میچنې او دوی کوزی وی .

او بیا چې د دغې بی بی د واده سامان نوي کورته وړل کیږي او په دغه سامان باندې د الهی پیغمبر نظر کیږي نو هغه داسې استقبالوي او وایی :

« مرحبا بجهاز المساکین »

ښه دی راشئ د مسکینانو سامان

شك نشته چې د فاطمې رضي الله عنها سره د حضرت علی رضی الله عنه نکاح خورا مبارکه او خورا نیکمرغه نکاح ده چې مسلمانانو د اسلام په تاریخ کې پیژندلی او ښایی له هغې څخه د پند او عبرت درسونه واخیستل شي .

دا سعید بن المسیب ( رحمه الله ) د تابعینو د علماوو لوی عالم دی چې خپله لور خپل صالح ، متقي او فقیر شاگرد عبدالله بن ابی وداعه ته په نکاح ورکوي او ده ته پر أموي خلیفه ( الولید بن عبدالملك ) ترجیح ورکوي او د خلیفه منصب ، جاه او قدرت په دیوال وهي .

دا دی عبدالله بن ابی وداعه د خپلې مبارکې نکاح داسې بیان کوي

« زه د سعید بن المسیب سره په مجالسو کې کښیناستم ، بیا هماغه چې هغه یو څو ورځې ونه لیدم نوکله چې ورته راغلم نو وې ویل : چیرته وی ؟

ما وویل : زما ښځه مړه شوې وه او د هغې په باب مشغول وم .

سعید وویل : ولې دې موږ خبر نه کړو چې د هغې د مړینې مراسمو ته درغلی وای . بیا چې ما وغوښتل چې ورڅخه ولاړ شم نوماته یې وویل : آیا بلې ښځې ته دې اقدام نه دی کړی ؟

ما وویل : پر تا دې الله رحم وکړي نو څوك به وي چې ماته ښځه په نکاح راکړي او زه یې له دغو دوه وو یا دریو درهمو بل څه نه لرم ؟

سعید وویل : زه یم .

ما ورته وویل : آیا ته دا کار کوی ؟

هغه وویل : هو ! نو هغه د الله تعالی ثنا وویله او پر پیغمبر صلی الله علیه وسلم یې درود ووایه او په دوه وو یا دریو درهمو یې ماته

خپله لور په نکاح کړه .

بیا ورځخه پورته شوم او نه پوهیدم چې له ډیری خوشحالی څه وکړم ، زه په دې سوچ کې شوم چې له چا ځخه پور واخلم نو ما د ماښام لمونځ وکړ او بیا خپل کور ته ولاړم او زه روژه وم او خپله افطاري می چې دودی او تیل وو ځان ته وړاندی کړل هماغه و چې دروازه وټکیدله .

نو ما وویل : څوک یې ؟

ویې ویل : سعید یم .

نو ما پرته له سعید بن المسیب د هرچا په باب چې سیعد نومیده سوچ وواهه ځکه سیعد بن المسیب د څلویښتو کلونو په موده کې سرای او مسجد لیده نو بیا ورووتم چې سعید بن المسیب دی .

نو ما ورته وویل : ای ابو محمده ! که تا ماته نفر استولی وای نو زه به درغلی وای .

هغه وویل : داسې نه ده ، ته د دې مستحق یې چې تاته راتله وشي .

نو ما وویل : ما ته څه امر کوی ؟

هغه وویل : ته بی ښځې سړی وی نو ما تاته واده وکړ او ما بده ګڼله چې ته دا شپه یوازی تیره کړی او دا ستا ښځه ده او هغه یې تر شا ولاړه وه نو بیا یې له لاسه ونیوله او په دروازه یې ننه ایستله . نو ما دروازه بنده کړله او کاسی ته چی په کې دودی او تیل وو ورنژدی شوم او د څراغ په تیاره کې می کاسه کیښودله څو ښځه می هغه ونه وینی نو بیا بام ته پورته شوم او د ګاونډیو کورونه می په ګیتکیو او لوټو وویشتل او په دې کار سره ګاونډیان راغلل او ماته یې وویل : څه دې ؟

ما وویل : تاسی پوه شئ چې سعید بن المسیب نن ماته خپله لور واده کړه او ماته یې همدغه شپه راوستله .

هغو وویل : آیا سعید خپله لور درواده کړه ؟

ما وویل : هو !

نو بیا هغوی زما کور ته دننه شول او چې می مور خبره شوه نو راغله او وی ویل : زما مخ ستا پرمخ حرام دی چې هغې ته تر دریو ورځو چې څو یې اصلاح کړم ورنژدې شې . نو ما درې ورځې تیرې کړې او بیا هغې ته ورننوتم نو گورم چې خورا ښکلې د ښځو ، د کتاب الله خورا ښه حافظه او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په سُنتو خورا ښه عالمه او د میړه په حق خورا ښه پوهه ده . بیا ما یوه میاشت تیره کړه او سعید ماته نه راته او نه زه هغه ته ورتلم . بیا چې یوه میاشت تیره شوه ورغلم نو وینم . هغه په حلقه کې ناست دی نو پرهغه می سلام وکې او هغه د سلام ځواب ووایه او څه خبره یې ما سره ونه کړه تر دې چې خلك خپاره شول نو ماته یې وویل : د هغه انسان حال څنگه دی ؟

ما وویل : په خیر ده ای ابومحمده ! بیا کور ته ولاړم نو بیا هغه ماته شل زره درهمه ولیږل .

دا وه د سعید بن المسیب ( رحمـه الله ) او د عبدالله بن ابی وداعه ( رحمه الله ) له عبرته ډکه قصه چې دلته یاده شوه او باید دلته ډیره پاملرنه وشي چې سعید بن المسیب څرنگه خپلې لور ته دیني ښودنه کړې ده او بیا هغه څرنگه خپله عالمه ، فاضله او متدینه لور خپل یو فقیر شاگرد ته چې دوه یا درې درهمه یې لرودل په نکاح ورکړه او د خلیفه جاه ، عظمت ، مال او دولت ته یې هیڅ ارزښت اُو اعتبار ورنه کړ البته هغه د خپل شاگرد علمی مقام او دیانت ته ترجیح ورکړه او دنیوی جاه او عزت یې بې اعتباره وگاڼه نو دا اسلام برکت او دا د اسلام په مدرسه کې د روزل شوی ښځې د فضیلت او ارزښت خبره وه چې دلته ما یاده کړه .

« فاعتبروا یااولی الأبصار »

همدغه د اسلام د آسمانی دین کتاب عظیم الشان قرآن دی چې .

ښځو د ښه حیثیت د تمجید او ذکر په لړ کې د فرعون د ښځې آسیه د ایمان او تقوی د فضیلت چې د فرعون له باطلې عقیدې او دعوی څخه مخالفه او بیزاره وه او همدا راز د بی بی مریمې له ایمان ، عبادت او تقوی څخه چې پلار یې ( عمران ) او مور یې ( حنه ) نومیدله یادونه کړې ده او دغه دواړه ښځې د ایمان ، تقوی او عبادت په سبب د الله تعالی په نزد د ښه مقام او قرب او د بشریت په تاریخ کې د خلکو او بیا په خاصه توگه د ښځو لپاره د ایمان ، تقوی او عبادت له حیثه د حقې لارې د اقتداء او پیروی خورا عالې مثالونه وي . الله تعالی په عظیم الشان قرآن کې د دغو دواړو صالحو ښځو داسې یادونه کړې ده :

« وضرب الله مثلاً للذین امنوا امرأت فرعون اذ قالت رب ابن لی عندك بیتاً فی الجنة ونجنی من فرعون وعمله ونجنی من القوم الظالمین . ومریم ابنت عمران التی احصنت فرجها فنفخنا فیه من روحنا وصدقت بكلمات ربها وكتبه وكانت من القانتین » (۱)

او بیان کړی الله یو مثال د هغو کسانو لپاره چې ایمان یې راوړی دی د فرعون ښځه کله چې یې وویل : ای زما ربه ! ماته په خپل نزد په جنت کې یو کور جوړ کړه او ما له فرعون او د هغه له عمل څخه وژغوره او ما د قوم ظالمانو څخه خلاصه کړه . او الله بیان کړی مثال د مریمې لور د عمران هغه چې خپل فرج یې ( له نکاح او زنا څخه ) ساتلی دی نو مونږ پو کړه په کې ( په گریوان کې یې ) له خپل روح څخه او هغې د خپل رب په خبرو او د هغه په کتابونو باور وکړ او له امر منونکو څخه وه .

د موضوع په پای کې په لنډه توگه داسې یادونه کیږي :

هغه دین ، هغه قانون او هغه مکتب چې ښځې ته په انسانی معزز حیثیت او ښه اعتبار قایل دی او ښځـه د نارینه ترڅنگه د خلقت او ژوند

---

(۱) التحریم : ۱۲ - ۱۳ .

په اصولو کې مشترکه ګڼي او د هغې د انساني کرامت او حقوقو بيحرمتي لويه ګناه او د وحشت او بربريت له کارونو څخه ښيي هغه د اسلام دين ، د اسلام قانون او د اسلام مکتب دی او بس او هغه کسان چې د اسلام په ضد پروپاګنډې کوي او د دغه آسماني دين د حقه وو مبادیو او تعليماتو او بيا په خاصه توګه د هغه د دريغ په باب چې د ښځو په شان کې يې لري غلط او بيځايه تعبيرونه کوي او ښځه د دغه دين له نظره ناچيزه موجود او مظلوم مخلوق ښيي او هغه د انساني روح او انساني حيثيت خاونده نه ګڼي دا د ډېرې حيرانتيا او تعجب خبره ده چې د ښځې په باب د اسلام د ترحم او تقدير روښانه حقيقت او سپيڅلتوب صورت ته خاورې شيندي او د خپلو ناوړو غرضونو په رڼځو او د حسد او دښمنۍ په لړو کې د هغه روښانه حقايق پټوي نو دوی دې ښه پوه شي چې د ښځو په باب د اسلام د حقيقت روښانه لمر د دوی د ناوړو تبليغاتو او بيځايه انتقادونو په تورو لړو پټېدلای نشي او د ښځو په باب د اسلام د معقوليت او مصلحت روښانه مشعل د دوی د فاسدو غرضونو په پوکی مړ کيدلای نشي .

« يريدون ليطفئوا نور الله بافواههم والله متم نوره ولو کره الکافرون » . (١)

( کافران ) غواړي چې د الله رڼا ( شريعت ) په خپلو خولو سره مړه کړي او الله د خپلې رڼا بشپړوونکی دی اګر که کافران ( د رڼا اتمام ) بد ګڼي .

همدغه لاس وهلی بدل مسيحيت نه دی چې د منافقت په ځيره کې ځان د ښځو د مساوات او آزادۍ حامي او منجي ( ساتونکی او نجات ورکوونکی ) ښيي او بيا همدغه ښځه د ګناه مظهر ګڼي .

---

(١) الصف - ٨ .

همدغه حقیقت او واقعیت دی چې د نننۍ مسیحیت د مذهبي کلیسا راهبان او راهباني له نکاح څخه ځانونه ساتي او په دې توګه هیله او غوښتنه کوي چې سبا ورځ له قبرونو څخه د ګناه په جامه کې ژوندي پورته نشي حال دا چې رهبانیت ( د ښځو له نکاح او د ژوند له لذایذو څخه ګوښه ځان ساتل ) د اسلام د مبادیو او تعلیماتو له روحیې او د بشري ژوند له خواصو او مقتضیاتو څخه مخالف دی او اسلام دغه راز رهبانیت غندلی او منع کړی یې دی .

الله تعالی د رهبانیت په باب داسې ویلي دي :

« وجعلنا فی قلوب الذین اتبعوه رأفةً ورحمةً ورهبانیة ابتدعوها ما کتبنها علیهم الا ابتغآء رضوان الله فما رعوها حق رعایتها » (۱)

او ګرځولي و مونږ د هغو کسانو په زړونو کې چې د هغه ( عیسی ) متابعت کړی ، نرمي او مهرباني او ( پیدا کړی و دوی له ځانه ) رهبانیت ( د دنیا پریښودل ) چې دوی هغه نوی له ځانه جوړ کړی و ، مونږ دغه ( رهبانیت ) په دوی نه و مقرر کړی مګر ( دوی غوره کړی و ) د الله د خوښې لپاره پس دوی د هغه ( رهبانیت ) رعایت ونه کړ څنګه چې د رعایت حق یې و .

دغه رهبانیت د حضرت مسیح عیسی علیه السلام تابعانو په وروستیو زمانو کې د ظالمو پاچاهانو د ظلم له لاسه له ځانه جوړ او منځ ته راوست او خپل ځانونه یې له دنیا څخه ګوښه او بیا دوی څنګه چې د هغه د رعایت حق و رعایت ونه کړ .

حضرت شاه صاحب لیکلی دي :

« دا د فقیرۍ او تارك الدنیا کیدلو رسم پرنګیانو ایستلی دی ، دوی په ځنګلونو کې یوه تکیه جوړوله او هلته به کښیناستل ، نه به یې ښځه

---

(۱) الحدید - ۲۷ .

لرله او نه به د اولاد په فکر کې لویدل ، شپه او ورځ به یې عبادت کاوه ، د خلکو سره به یې خبری اتری نه درلودی او له هغو ځنی به لری تښتیدل او حال دا دی چې الله تعالی خپلو بنده ګانو ته داسې حکم نه دی کړی ( چې دنیا داسې پریږدي او له حرمی اوزګار کښیني ) نوکله چې دوی پر خپلو خانو باندې د دنیا تارك نوم کیښود نو بیا به په پټه او پرده کې د دنیا غوښتنه ډېره لویه ګناه ده » .

همدا راز پیغمبر علیه الصلوة والسلام ویلي : « لارهبانیة فی الأسلام » یعنی په اسلام کې رهبانیت نشته . شك نشته اسلام دغه راز رهبانیت نه مني او خپلو پیروانو ته لارښودنه کوي چې هم د دنیا او هم د آخرت دواړو لپاره عمل وکړي ، خپل دنیوي ژوند په حلال کسب او حلاله روزی تضمین کړي ، نکاح وکړي او د خپلې ښځې په ملګرتیا او مرستی د خپلی کورنی موجودیت ښه ساتنه وکړي او چې اولاد ور په برخه شو د هغه ښه روزنه وکړي او په ښې روزنې هغه د ټولنې صالح او بنیادي غړی وګرځوي . (۱)

---

(۱) کابلی پښتو تفسیر ۳۱۷۲ .

## د ښځې او مېړه حقوق او واجبات

څنګه چې ښځه او نارینه د ژوند په ساحه کې یو د بل ملګری او مرستندوی او د کورنی موجودیت بنیادي عناصر اود فرد او ټولنې په جوړلو کې د اغیزناك دریځ اومسؤولیت لرونکی ده دا دی په لاندې ډول د هر یوه له حقوقو او واجباتو څخه یادونه کیږي .

### الف - پر مېړه باندې د ښځې حقوق :

#### ۱ - مهر :

هرکله چې د ښځې او نارینه ترمنځه د نکاح عقد په ایجاب او قبول سره وشي او پر مېړه باندې د ښځې مهر وټاکل شي نو بیا پر مېړه باندې د مهر ورکول واجب دي . او باید ښځې ته خپل مهر پوره ورکړ شي البته د مهر لږه اندازه لس درهمه او د زیاتو اندازه یې ټاکلې حد نه لري .

الله تعالی د ښځو د مهر د اداء کولو په باب داسې توصیه کړې ده :

« واتوالنسآء صدقتهن نحلةً فإن طبن لکم عن شیءٍ منه نفساً فکلوه هنیئاً مریئاً » (۱)

او ورکوئ تاسی ( خپلو ) ښځو ته د دوی مهرونه د خوشحالۍ په ورکړه ( چی د الله له طرفه پر تاسی فرض شوی ) نو که راضی شوی دا ( ښځی ) تاسی ته ( په بخښنل ) له کوم شی له دی ( مهر په خوشحالی ) د نفس خپل نو خورئ تاسی دغه شی په داسې حال کې چې خوندوره حلاله بی ضرره وي .

همدا راز حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم د ښځې د مهر د پوره ورکولو داسې یادونه کړې ده :

« أحق الشروط أن توفوا به ما استحللتم به الفروج » (۲)

یعنی خورا ډیر وړ د شرطونو دا دی چې تاسې په هغه سره د ښځو څخه استمتاع روا کړې ده .

ویل شوي دي :

یوه ورځ عمر بن الخطاب رضی الله عنه د ښځو د مهرونو د لږولو په غرض خلکو ته داسې توصیه کوله او ویل یې :

« لاتغلوا صداق النساء فإن رسول الله صلی الله علیه وسلم ما تزوج ولازوج بناته باکثر من اربعمائةٍ درهمٍ ولو کانت المغالاة بمهور النساء مکرمة فی الدنیا او تقوی فی الاخره لکان أولاکم بها النبی صلی الله علیه وسلم » .

تاسې د ښځو په مهر کې زیاتوالی مه کوئ بیشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم په نکاح نه ده اخیستې او نه یې خپله لور له څلور سوه

---

(۱) النساء - ٤ .

(۲) رواه البخاری ومسلم عن عقبة بن عامر - مشکوة المصابیح ۲۷۱ .

درهمو زيات په نكاح وركړي او كه د ښځو د مهرونو زياتوالی په دنيا كې د ستايلو وړ او د الله په نزد تقوی وای نو ستاسی په نسبت د دې ډير وړ به نبی صلی الله عليه وسلم وای .

بيا همدغه د اسلام دويم خليفه اعلان وكړ كه چا خپلې ښځې ته د پيغمبر صلی الله عليه وسلم د ښځو له مهر څخه زيات وركړ نو زياتی به ورڅخه واخيستل شي او بيت المال ته به وركړ شي ، په دغه وخت كې يوه ښځه ورته ودريده او وی ويل :

« ماذا تقول ، ليس ذلك لك »

ته څه وايې ، تاته د دې حق نشته .

هغه وويل : ولم ؟ او د څه لپاره ؟

ښځې په ځواب كې وويل :

إن الله قال : « واتيتم احداهن قنطاراً فلا تأخذوا منه شيئاً »

بی شكه الله ويلي دي : « حال دا چې تاسی وركړی وی يوی د دوی ته ډير مال ( په مهر كې ) نوتاسې ( ای ميړونو ) له هغه ( مال ) څخه هيڅ شی مه اخلئ . نو عمر بن الخطاب رضی الله عنه له خپل تصميم څخه وگرځيد او وېې ويل :

« أخطا عمر واصابت امراة »

عمر تير وتلو او ښځې حقه وينا وكړه . (۱)

۲ - د ښځې له حقوقو څخه يو حق چې په ميړه يې لري هغه نفقه ، جامه ، استوگنی ځای او كه نوری ښځې ولري نو د شپې تيرولو نوبت حق دی ( البته پر ميړه باندې د ښځې نفقه ، جامه او استوگنی ځای د ميړه د مالی او اقتصادي توان په اساس وي ) .

---

(۱) العدالة فی ضوء الاسلام - ٤٠ ؛ الزواج الاسلامی ٧٤ .

الله تعالی د ښځو د حقوقو په باب داسې ويلي دي :

« ولهن مثل الذی علیهن بالمعروف » (١)

او ښځه دوی ( ښځو ) لره ( پر مېړونو حقوق ) په شان د ( هغو حقوقو ) چې په دوی دي په ښه وجه .

همدا راز حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم د حجة الوداع په ورځ په عرفات کې د ښځو د حقوقو په باب داسې یادونه کړې ده .

« ولهن علیکم رزقهن وکسوتهن بالمعروف »

او د هغوی ( ښځو ) لپاره پرتاسې د هغوی روزي او د هغوی جامه په نیکه طریقه سره ده .

بل حکیم بن معویة القشیری له خپل پلار څخه روایت کړی چې هغه ویلي دي :

« قلت یا رسول الله ! ماحق زوجة أحدنا علیه ؟ قال : أن تطعمها إذا طعمت ، وتکسوها إذا اکتسیت ، ولاتضرب الوجه ولاتقبح ولاتهجر إلا فی البیت » (٢)

ما وویل : ای د الله رسوله ! زمونږ د یوه د ښځې حق پرهغه څه دی ؟ وی ویل : هغې ته طعام ورکړې کله چې طعام خورې ، هغې ته جامه ورواغوندې کله چې ته جامه اغوندی ، او پر مخ یې مه وهه ، او ورته بده وینا مه کوه ، او مه یې پرېږده ( خپله شا ورته د خوب په بستر کې مه گرځوه ) مگر په کور کې .

همدا راز هغه څوك چې خپلې ښځې ته په ښه توگه نفقه ورکوي حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم د هغه نفقه کول د هغه له صدقاتو څخه ښودلې دي .

« إذا أنفق الرجل علی أهله نفقة یحتسبها فهو له صدقة » (٣)

---

(١) البقرة – ٢٨٨ .
(٢) رواه احمد وابوداود وابن ماجة .
(٣) أخرجه البخاری من حدیث ابن مسعود عن النبی صلی الله علیه وسلم .

کله چې سړی پر اهل نفقه کوي او په هغې سره ( د الله ځخه ) د ا غوښتنه کوي نو هغه ورته صدقه ده .

دلته د موضوع په مناسبت د جمهورو فقاوو د قول یادونه کوو او هغه داسې دی :

« جمهور فقهاء په دې قول دي چې د ښځې نفقه چې په کور کې د کورنیو چارو انتظام کوي او د اولاد روزنه کوي ، پر میړه باندې واجبه ده ، البته څنګه چې وویل شول د ښځې نفقه به د میړه د اقتصادي حالت په مطابق وي . (۱)

الله تعالی ویلي دي :

« لینفق ذوسعة من سعته ومن قدر علیه رزقه فلینفق مما اتاه الله لایکلف الله نفساً الا ما اتاه » (۲)

نو نفقه دی ورکوي ( مطلقه و او مرضعه و د طاقت خاوند د خپل طاقته ، او هغه چې پرهغه باندې روزي یې تنګه شي نو له هغه دې نفقه کوي چې هغه الله ورکړی وي الله هیڅ نفس ته تکلیف نه ورکوي مګر په هغه اندازه چې هغه ته یې ورکړی وي ( له ماله ) .

ځینو نورو چې په ظاهریه سره یادیږي داسې ویلی دي :

« که میړه څه نه درلودل او ښځه یې شتمنه وه نو په دغه حالت کې ښځه مکلفه ده چې خپل میړه ته نفقه ورکړي » .

په دغه باب ابن حزم ظاهری دغه قرآني ایت دلیل بنیي او هغه دا دی :

« وعلی المولود له رزقهن وکسوتهن بالمعروف لاتکلف نفسٌ الا وسعها لاتضار والدة بولدها ولامولودٌ له بولده وعلی الوارث مثل ذلك » (۳)

او په مولودله ( پلار ) د دوی ( میندو ) روزي او د دوی کالي

---

(۱) العدالة فی ضوء الاسلام - ۵۳ - ۵٤ . (۲)الطلاق - ۷ .

(۳) البقرة - ۲۳۳ .

شته په ښه وجه ( د دستور سره سم ) او زور نشي کولی په هيڅ نفس باندی مګر د هغی د توان په اندازه ، نه دی ضرر رساوه کيږي مور ته د دی د ولد په سبب او نه ( دی ضرر رساوه شي ) پلار ته د ده د ولد په سبب او شته ( د پلار ) په وارث باندې د هغه په شان ( نفقه چې په پلار باندی وه ) .

دا د ظاهريه وو نظريه ده چې د نيستی په وخت پلار د نفقی له تکليف څخه معاف ګڼي مګر عمل د جمهورو علماوو د نظريی په اساس دی او هغه داسې که ميړه د مالي اقتصاد له حيثه که شتمن وي يا نيستمن د ښځی نفقه د ده په غاړه ده . البته د نيستی په حالت کې به له خپلو ښځی څخه نفقه په قرض اخلي او حق به يې محفوظ وي او بيا کوم وخت چې ميړه شتمن شو نو د ښځی حق به بيرته ورادا ء کړي .

بايد ووېل شي چې د ښځی د نفقی استحقاق په لاندې ډول دی .

١ - دا چې نکاح په شرعي توګه صحيحه وي .

٢ - دا چې ښځه ناشزه ( د ميړه له اطاعته سرغړوونکی ) نه وي .

راغلو دېته :

که يو سړی له يوې ښځی څخه پرته دوېمه يا درېمه او څلورمه ولري نو په دغه صورت کې د ميړه مکلفيت دا دی چې د نفقی ، جامی ، استوګنځی او شپی تيرولو له حيثه د ټولو ښځو په باب له عدالت او مساوات څخه کار واخلي او يوی ته پر بلی باندې د نفقی ، جامی ، استوګنځی او د شپی تيرولو د نوبت له حيثه ترجيح ورنه کړي ، البته د زړه ميلان او مينه يو استثنايی حالت دی او له دغه حيثه ميړه ته کوم مسؤوليت نه راجع کيږي .

له حضرت عايشې أم المؤمنين رضی الله تعالی عنها څخه روايت دی :

« أن النبی صلی الله عليه وسلم كان يَقْسِمُ بين نسائه فيعدل ويقول :

اللهم هذا قسمی فیما أملك فلا تلمنی فیما تملك ولا أملك » (۱)

ای الله ! دا زما نوبت دی په هغه څه کې چې زما په ملکیت ( توان او اختیار ) کې دی نو ته ما په هغه څه کې چې ستا په ملکیت کې دی او زما په ملکیت نه دی مه ملامتوه .

نو هغه څوك چې له یوې زیاتې ښځې لري او د هغوی ترمنځه د عدالت د معیار مراعات نه کیږي حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم په دغه باب داسې ویلي دي :

« إذا کانت عند الرجل امرأتان فلم یعدل بینهما جاء یوم القیامة وشقه ساقط » (۲)

کله چې د یو سړي په نزد دوی ښځې وي او د دوارو ترمنځه عدالت ونه کړي نو د قیامت په ورځ به راشي او یو څنګ به یې ساقط وي .

۳ - د ښځې د طبیعي خوشحالول او ورسره ښه معاشرت او سلوك کول :

باید وویل شي چې نیك معاشرت د جامع مفهوم لرونکی او هغه داسې چې د ښځې او میړه ترمنځه د ښه خلق ، عاطفی ، محبت ، اخلاص ، ورین تندي ، خندانه مخ ، خوش طبیعی ، ټوکو ، ښو خبرو احترام ، عفوی ، تحمل او یو بل ته د خیر غوښتلو حالات موجود وي .

په دې کې څه شك نشته چې کوم وخت میړه د خپلی ښځې طبع خوشحالوي او له هغې سره په ورین تند خبرې کوي او له هغې سره ښه سلوك او نیکه رویه کوي نو د هغې ورسره مینه زیاتیږي ، ښه خدمت یې کوي او د حقوقو یې پوره مراعات کوي او تل یې د خوښ ساتلو په هڅو کې وي . همدغه د ښځې سره د ښه معاشرت ارزښت او ضرورت دی چې

(۱) رواه الترمذی وابوداود والنسائی وابن ماجة والدارمی، مشکوة المصابیح ۲۷۹ .
(۲) رواه الترمذی وابوداود والنسائی وابن ماجة والدارمی عن ابی هریرة رضی الله عنه - مشکوة المصابیح ۲۷۹ .

الله تعالی په عظیم الشان قرآن کې د هغه په باب داسې توصیه کوي او وايی :

« وعاشروهن بالمعروف » النساء - ۱۸

او د هغوی ( ښځو ) سره په ښه وجه معاشرت وکړئ .

همدا راز حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم له خپلو ښځو سره د خوش طبعی خبری او رویه کوله او هم يې په دغه باب مسلمانانو ته توصیې کولی .

له حضرت عائشی أم المؤمنین رضی الله تعالی عنها څخه روایت دی وايې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلی دي :

« خیرکم خیرکم لأهله وأنا خیرکم لأهلی وإذا مات صاحبکم فادعوه » (۱)

خورا ښه د تاسی خورا ښه د تاسی دی چې د خپل اهل لپاره وي او زه خورا ښه د تاسی یم د خپل اهل لپاره او کله چې ستاسی ملګری ( میړه یا ښځه ) ومري نو د هغه لپاره دعاء وکړئ .

همدغه الهی پیغمبر دی چې د بی بی عایشی رضی الله تعالی عنها سره د ځغاستی مسابقه کوله او د هغې د طبعی د خوشحالی غوښتنه کوله .

له عایشی رضی الله تعالی عنها څخه روایت دی چې هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په یو سفر کې وه ویل یی :

« فسابقته فسبقته علی رجلی فلما حملت اللحم سابقته فسبقنی ، قال : هذه بتلك السبقة » (۲)

ما د هغه سره په خپلو پښو مسابقه وکړه نو ورڅخه مخکې شوم بیا کله چې غوسه منه شوم ما ورسره مسابقه وکړه ، له ما څخه مخکی شو ، وی ویل : دا دې د هغې مسابقې په مقابل کې وي .

---

(۱) رواه الترمذی والدارمی عن عایشة رضی الله تعالی عنها - مشکوة المصابیح ۲۸۱ .

(۲) رواه أبوداود .

د حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم او د عایشی رضی الله عنها ترمنځه د ځغاستلو مسابقه داسې وه چې کله دواړه په لومړي ځل د ځغاستلو مسابقه وکړه ، په دغه وخت بی بی عایشی د بدن چاغوالی نه درلود نو د الهی پیغمبر څخه په ځغاستلو کې ترمخه شوه او بیا چې دواړو په بل کال د ځغاستلو مسابقه وکړه ، نو په دغه وخت د بی بی عایشی د بدن غوښی زیاتی شوی وی نو په دغه ځل الهی پیغمبر له بی بی عایشی څخه ترمخه شو او ورته یې داسې وویل : « هذه بتلك » دا د هغی په مقابل کې دی .

همدا راز له عایشی رضی الله تعالی عنها څخه روایت دی وایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلی دي :

« إن من أكمل المؤمنين ايماناً أحسنهم خلقا وألطفهم بأهله » (١)

بیشکه خوړا کامل د مؤمنانو د ایمان له حیثه خورا ښه د دوی د اخلاقو له حیثه او خورا ښه مهربان د دوی د خپل اهل سره وي .

همدغه له ښځو سره د ښه معاشرت او گوزاری لوی ارزښت او ضرورت دی چې حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم د هجرت په لسم کال د عرفات په میدان کې د حجّة الوداع په تاریخي غونډه کې د نارینه و او د ښځو د حقوقو د احترام او له هغوی سره د ښه معاشرت او گوزاری د کولو دیره مهمه او نه هیریدونکی وینا کړی ده او له مسلمانانو څخه د خپلو لارښودنو د مراعات کولو غوښتنه کړی ده .

له عمرو بن الاحوص الجشمی رضی الله عنه څخه روایت دی وایې چې بیشکه ده په حجّة الوداع کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اوریدلي چې د الله تعالی د حمد او ثناء له ویلو وروسته یې داسې ویل :

« ألا واستوصوا بالنساء خيراً فإنما هن عوان عندكم ، ليس تملكون منهن

(١) رواه الترمذی - مشکوة المصابیح ٢٨٢ .

شيئاً غيرذلك إلا أن يأتين بفاحشة مبينة ، فإن فعلن فاهجروهن فى المضاجع واضربوهن ضرباً غيرمبرّح ، فإن أطعنكم فلاتبغوا عليهن سبيلاً ألا إن لكم على نسائكم حقاً ، ولنسائكم عليكم حقاً ، فحقكم عليهن أن لايوطئن فرشكم من تكرهون ، ولايأذنّ فى بيوتكم لمن تكرهون . ألا وحقهن عليكم أن تحسنوا إليهن فى كسوتهن وطعامهن » (٢)

باخيره اوسئ ، د ښحو په باب زما د نيکی وصيت ومنئ چې دوی ستاسې په لاسونو کې قيدی دي ، تاسی پر دوی پرته له دی بل حق ته لرئ مگر دا چې دوی د ښکاره بی حيايی کار وکړي ، که دوی دغه راز كوم كار وكړ نو دوی د خوب په ځای کې له خپل ځان څخه جلا کړئ ، نو که دوی

ستاسی اطاعت وکړ نو بيا تاسې پرهغوی باندې د الزام لگولو لارې مه پلټئ . باخبره اوسئ ، بيشکه تاسی پرخپلو ښځو حق لرئ او ستاسی ښځې پرتاسې حق لري ، ستاسی حق پرهغوی باندی دا دی چې هغوی ستاسی فرشونه په هغه چا چی نه يی خوښوی د پښو لاندی نه کړي ، او نه هغه چا ته چی هغه نه خوښوي کور ته د راتگ اجازه ورکړئ . باخبره اوسئ ، او د هغوی حق پرتاسی باندې دا دی چې د هغوی په پوښاك او طعام کې له هغوی سره نيکي وکړئ .

## ٤ - د ښځې د راز ساتل :

ځنګه چې پرښځې بانی د ميړه د راز پټ ساتل لازم دي همدا راز بايد ميړه هم د خپلې ښځې سر او راز پټ وساتي ځکه د راز په افشا کولو کې د دواړو خفگان او د اړيکو خرابی منځ ته راځي او د بدو عواقبو

(٢) رواه الترميذی وقال حديث حسن صحيح - سيرة النبی صلی الله عليه وسلم سليمان ندوی ، ج ٦ ، ١٩٥ مخ .

سبب کیږي ( أخرج مسلم وابوبوداود وغیرهما من حدیث ابی سعیدالخدری رضی الله عنه ) .

« إن من شرالناس منزلة یوم القیامة الرجل یفضی إلی امرأته بسر وتفضی إلیه ثم ینشر أحدهما سر صاحبه »

بی شکه د قیامت په ورځ د مقام له حیثه خورا شریر د خلکو هغه دی چې سړی خپلې ښځې ته سِر ووایی او ښځه هغه ته ووایی او بیا یو له دوارو د خپل ملګري سِر ښکاره کړي .

## ٥ - ښځې ته تعلیم ورکول :

د ښځې، بل حق پر میړه دا دی چې میړه خپلې ښځې ته د دین مبادی اومسایل یعنی هغی ته د اسلامي عقیدی ، اسلامی عباداتو ( لکه لمونځ ، روژه ، زکوة او حج ) د کورنی چارو د ښه تدبیر او د اولاد د روزنی او په خپلو منځو کې یو د بل د حقوقو او واجباتو ښوونه وکړي او هم باید هغې ته د حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم د بیبیانو له دینی حالت ، تقوی اوتعلیم او دا چې د مسلمانانو ښځو لپاره د اقتدا او پیروی عالی نمونی وی او همدا راز د نورو مسلمانو ښځو د دیانت ، تقوی ، جهاد او د هغوی د علمي خدمتونو یادونی وکړي ځکه ښځو ته دینی تعلیم د اولاد په رزلو کې مهم نقش او تاثیر لري .

الله تعالی د اهل البیت په باب د مسلمان له مسؤولیت څخه داسې یادونه کړی ده :

« یاایهالذین امنوا قوا انفسکم واهلیکم ناراً » (١)

ای مؤمنانو ! خپل ځانونه او خپل امل له اوره ( د هغو شیانو څخه چې د دوزخ د اور موجب ګرځي ) وساتئ .

---

(١) التحریم - ٦ .

همدا واز حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم ویلی دي :

« والرجل راعٍ علی أهل بیته وهو مسؤلٌ عن رعیّته » (۱)۰

او سړی پرخپل اهل البیت باندي لکه ( شپون ) سرپرست دی او هغو څخه مسؤول دی .

البته د اهل البیت اطلاق د سړي پرښځی ، اولاد اونورو باندی کیږي او سړی د خپلي کورني د غړو له دیني تعلیم څخه مسوول ګرځول شوی دی او هغه باید د خپلي کورنی د غړو په باب د دینی ښوونی مسؤولیت په ښه توګه ترسره کړي او بیا د هغه ښځه چي ورته د کورنی چارو اداره او د اولاد د روزلو وظیفه ور په غاړه ده د هغې د دینی تعلیم په باب زیاته پاملرنه وشي .

د مصر مشهور شاعر شوقی ویلی دي :

« الأم مدرسة إذا هذبتها - هذبت شعبا طیب الأغراق »

یعنی مور مدرسه ده ، کله چې هغه مهذبه وګرځوئ نو د هغې په تهذیب سره به یو ملت مهذب کړی چې هغه به د ښو اصولو لرونکی وي .

## ب - پر ښځی د میړه حقوق :

څنګه چي ښځه پرخپل میړه حقوق لري همدا راز میړه هم پرخپلی ښځی حقوق لري او حقوق یې په لاندې ډول دي :

## ۱ - د میړه اطاعت :

ښځه مکلفه ده چې د خپل میړه اطاعت وکړي ، د هغه خبره ومني او د هغه د خوښی او رضا پوره مراعات وکړي .

---

(۱) دا د هغه حدیث یو جزء دی چی د هغه روایت بخاری او مسلم دوارو له عبدالله بن عمر رضی الله عنهما څخه کری دی - مشکوة المصابیح ۳۲۰ .

الله تعالی ویلی دي :

« فإن اطعنكم فلاتبغوا عليهن سبيلاً » (١)

پس که دوی ( ښځې ) ستاسی ( ای میړونو ) اطاعت وکړي پس پرهغوی باندې ( د الزام ) لاره مه لټوئ .

حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم هغې ښځې ته چې د خپلو دینی مسؤولیتونو د اداء کولو ترڅنګه خپل ځان له زنا څخه ساتي او د خپل میړه اطاعت کوي ، د جنت داسی زیری ورکوي :

« إذا صلت المرأة خمسها وصامت شهرها وأحصنت فرجها وأطاعت بعلها فلتدخل من أی ابواب الجنة شاءت » (٢)

هغه وخت چې ښځه خپل پنځه وخته لمونځونه وکړي او خپل میاشت ( رمضان ) روژه شي او خپل ځان له زنا وساتي او د خپل میړه اطاعت وکړي نو جنت ته دی له هری دروازی څخه چې وغواړي ورداخله شي .

یوه ښځه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغله او ورته یې داسې وویل :

« یارسول الله ! إنی رسول النساء الیك ، وما منهن امرأة علمت أو لم تعلم إلا وهی تهوی مخرجی الیك »

ای د الله رسوله ! بیشکه زه تاته د ښځو استازی یمه او د هغوی څخه که هره ښځه ( زما په راتلو تاته ) پوهیږي او که نه پوهیږي مګر هغه زما په وتلو تاته خوښیږي .

بیا دغی ښځې خپل عرض داسی وړاندې کړ او وی ویل :

« الله رب الرجال والنساء والههن وأنت رسول الله إلی الرجال والنساء کتب الله الجهاد علی الرجال فإن أصابوا أجروا ، وإن استشهدوا کانوا أحیاء

---

(١) النساء - ٣٤ .

(٢) رواه ابونعيم فی الحلية عن ابی هريرة رضی الله عنه مرفوعا - مشكوة المصابيح ٢٨١ .

عند ربهم يرزقون فما يعدل ذلك من أعمالهم من الطاعة ؟ »

الله د سړيو او ښځو رب او معبود دی او ته سړيو او ښځو ته د الله رسول يې ، الله پر سړيو باندې جهاد فرض کړی دی ، که دوی اصابت وکړي ( بری ومومی ) نو دوی ته اجر ورکول کيږي ، او که شهيدان شي نو دوی د خپل رب په نزد ژوند دي او ورته روزي ورکوله کيږي ، نو د دوی د طاعت د عملونو سره څه شی برابري کوي ؟

نو الهی پيغمبر ووېل :

« طاعة آزواجهن ، والقيام بحقوقهم وقليل منكن من يفعله »

د خپلو ميړونو اطاعت او د هغو د حقوقو ادا کول او لږ له تاسې هغه څوك دي چې کوي يې (١)

## ٢ - د ميړه د نفساني غوښتنې منل :

کله چې ميړه خپله ښځه د نفساني غريزې له امله ځان ته وغواړي نو ښځه دی چې لکه حيض اونفاس شرعی عذر ونه لري د خپل ميړه غوښتنه دی ومني او ورځخه دی مخالفت او سرکښنی نه کوي .

له طلق بن علی څخه روايت دی وايې چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ويلی دي :

إذا الرجل دعا زوجته لحاجته فلتأته وان كانت على التنور » (٢)

څه وخت چې سړی خپله ښځه خپل حاجت ( کوروالي ) ته وغواړي نو ورتله دی وکړي اگر که ښځه په تنور باندی وي ( يعنی د تنور ډوډۍ څول دی پريږدي او د خپل ميړه دی اجابت وکړي ) .

البته هغه ښځه چې ميړه يې د خپلې نفساني غريزې په تقاضا ځان

---

ا عدالة فی ضوء الإسلام - ٤٢ .

(١) رواه الترمذی .

ته وغواړي او هغه ورته رانشي نو حضرت پيغمبر صلى الله عليه وسلم د دغه راز نافرمانى ښځى په باب داسى ويلى دي :

« إذا دعا الرجل امرأته إلى فراشه فأبت فبات غضبان لعنتها الملائكة حتى تصبح (١)

كله چې سړى خپله ښځه خپل فراش ته وغواړي پس هغې ( بى له شرعى عذره ) منعه راوړه او هغه په غوسه شپه سبا کړه نو پرستى پرهغې باندې لعنت وايى ترهغه چې شپه سبا کړي .

## ٣ - د ميړه د كورنى چارو انتظام او د اولاد روزل :

دا په كورنى ساحه او محيط كې د ښځې مسؤليت دى چې د كور ساتنه وکړي ، د پخلي او د كاليو د وينځلو او د اولاد د روزلو وظيفه ترسره کړي او په خپلو كورنيو چارو كې له صداقت او امانت څخه كار واخلي .

حضرت پيغمبر صلى الله عليه وسلم د ميړه په نسبت د ښځې د مسؤليت داسې يادونه کړې ده :

« المرأة راعية على بيت زوجها وولده ومسؤلة عن رعيتها » (٢)

او ښځه د خپل ميړه پر كور او د هغه پر أولاد سرپرسته ده او له خپل رعيت څخه مسؤوله ده .

## ٤ - د ميړه د راز پټ ساتل :

څنګه چې پر ميړه باندې د ښځې د راز پټ ساتل لازم دي همدا راز پر ښځې باندې لازم دي چې د خپل ميړه راز پټ وساتي او د راز په افشا كولو د خپل ميړه د خفګان او دښمنى سبب نشي .

---

(١) رواه البخارى ومسلم عن ابى هريرة رضى الله عنه - مشكوة المصابيح ٢٨٠ .
(٢) دا د هغه حديث جزء دى چى د هغه روايت بخارى اومسلم له عبدالله بن عمر رضى الله عنهما څخه كړى دى .

## ۵ - ښځې د مېړه له اجازې چاته څه نه ورکول :

د ښځې له صداقت او امانت ساتلو څخه دا دی چې د مېړه په مال کې بېځايه لاس وهنه ونه کړي او ښځې د هغه له اجازې چاته له ماله يې څه ونه کړي . په هغه حديث کې چې د هغه اخراج ابوداود او طيالسی او بيهقی له ابن عمر رضی الله عنه څخه په مرفوع توګه کړی دی داسې راغلي دي :

« ولاتعطى شيئاً من بيته إلا بإذنه فإن فعلت ذلك كان له الأجر وعليها الوزر »

او ښځې د هغه له اجازې له کوره به يې څه شی نه ورکوي او که دا کار يې وکړ نو هغه ته به اجر وي او دې ته به ګناه وي .

## ٦ - ښځې د مېړه له اجازې له کوره نه وتل :

بل د مېړه حق پر ښځې باندې دا دی چې ښځې د هغه له اجازې له کوره به نه وځي او چيرته به نه ځي .

بيهقي له عبدالله بن عمر رضی الله عنهما څخه هغه حديث چې مرفوع دی داسې اخراج کړی دی :

« وأن لاتخرج من بيته إلا بإذنه فإن فعلت لعنها الله وملائكة الغضب حتى ترجع قيل وإن كان ظالماً قال وإن كان ظالماً » (۱)

او دا چې د هغه له کوره ونه وځي مګر په اجازې سره او که ووتله ( ښځې له اجازې څخه ووتله ) نو پرهغې به الله او د هغه د غضب پرستی لعنت وکړي ترهغې چې هغه رجوع وکړي ، وويل شول : اګر که ظالم وي ؟ هغه وويل : اګر که هغه ظالم وي .

---

(۱) قال العراقي هكذا رواه ابوداود والطيالسي وابن عساكر .

## ۷ - بی د میړه له اجازې کور ته د بل چا نه بلل :

همدا راز دا پر ښځې باندې د میړه حق دی چې ښځه د خپل میړه کور ته بیگانه نامحرم سړی را ونه بولي .

حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم ویلی دي :

« فحقکم علیهن أن لایوطئن فرشکم من تکرهون ، ولاتأذن فی بیوتکم لمن تکرهون » (۱)

نو ستاسی حق پر دوی ( ښځو ) باندی دا دی چې ستاسی پر فرش هغه څوك چې بد یی گڼئ پښه کښیږدی او هغه چاته چې تاسې هغه نه خوښوی کور ته ( د ننوتلو ) اجازه ونه کړئ .

## ۸ - د بیگانه سړي سره خلوت نه کول :

دا پر ښځې باندې د میړه حق دی چې د بیگانه ( نامحرم ) سړي سره خلوت ونه کړي یعنی په یو گوښه ځای کې چې بل څوك هلته نه وي د نامحرم سړي سره ناسته او خبرې ونه کړي .

همدغه د بیگانه سړي سره د بیگانه ښځې خلوت کول دي چې حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم د هغه د خطر په باب داسی ویلی دي :

« لایخلون رجل بإمرأة إلا کان ثالثهما الشیطان » (۲)

سړی د بیگانه ښځې سره خلوت نه کوي مگر شیطان د هغو دواړو دریم دی یعنی کوم وخت چې بیگنه سړی او بیگانه ښځه په یو گوښه ځای کې په خلوت کې شي نو شیطان د دواړو په نفسونو کې وسوسه اچوي او دواړه زنا ته هڅوي نو ښایی له داسې خلوت څخه ډډه وشي .

---

(۱) رواه الترمذی وقال حدیث حسن صحیح .

(۲) رواه الترمذی عن عمربن الخطاب رضی الله عنه - مشکوة المصابیح ۲۶۹ .

## ۹ - بی د میړه له اجازې نفلي روژه نه نیول :

کله چې میړه په سفر نه وي وتلی او په کور کې حاضر وي نو په دغه وخت کې ښځې ته دا نشته چې بی د هغه له اجازې نفلي روژه ونیسي او د هغه د جنسي غریزې تقاضا په نظر کې ونه نیسي .

د بیهقي په اخراج له عبدالله بن عمر رضی الله عنهما څخه په مرفوع حدیث کې داسې راغلي دي :

« وأن لاتمنعه نفسها وإن كانت على ظهر قتب ، وأن لاتصوم يوماً واحداً إلا بإذنه إلا الفريضة »

او دا چې خپل نفس له هغه ( میړه ) څخه منع نه کړي اګر که د سورلۍ په شا وي او دا چې یوه ورځ هم روژه نشي مګر د هغه په اجازې مګر فرضي او که بیا روژه شوه نو ګنهکاره به شي او ورڅخه به قبوله نشي .

یعنی که د رمضان فرضي رژه وه نو دغه روژه د میړه په اختیار او اجازې تعلق نه لري او هرڅه چې بی له رمضان څخه په بل وخت کې نفلي روژه نیسي نو نفلي روژه به د هغه په اجازې سره نیسي .

## ۱۰ - د میړه د رضا او خوښۍ فضیلت :

« ايما امرأة ماتت وزوجها راضٍ دخلت الجنة » (۱)

هر هغه ښځه چې مړه شوه اومیړه یې راضي وي جنت ته به ورننوځي

(۱) رواه ابن ماجة والترمذي وحسنه والحاكم وصححه .

# د اسلام له نظر د ښځې او نارينه دخلقت او فطرت ، ژوند او عمل مشترك اصول

هغه مشترك اصول اومبادی چې د کايناتو خالق اومدبر د انسانی نوعی د نارينه او ښځی له خصوصياتو او صفاتو څخه ګرځولی او پر دغو اصولو او مبادیو د هغو ژوند او عمل اتکاء لري د هغو له جملې څخه د ځينو يادونه په لاندې ډول سره کيږي .

## ۱ - د خلقت مبدأ :

د عظيم الشان قرآن د مبارکو آيتونو او نبوي احاديثو د شهادت او اخبار په اساس د انسانی نوعی د نارينه وو او ښځو د خلقت مشترك اصل د زمکی خاورين عناصر دی او هغه داسې چې کوم وخت الله تعالی د انسانی نوعی مخلوق د لومړي فرد او پلار آدم عليه السلام کالبوت او

صورت د زمکی له خاورینو عناصرو څخه جوړ کړ نو بیا یې د خپل کامل او محیط علم او لوی حکمت اومصلحت له مخې د هغه له وجود څخه یوه څه حصه جلا او له هغې څخه یې د هغه جوړه حواء ( علیها السلام ) په ښځینه شکل او صورت پیدا کړه او بیا یې دواړه د انسانی نسلونو د پیداینښت او ډیرښت مصدر او منشأ وګرځول .

الله تعالی د آدم او حواء علیهما السلام او د هغو د نسل له خلقت او همدا راز د هغو د نسل له ډیرښت اوتیتوالی څخه داسې یادونه کړی ده :

« یایها الناس اتقوا ربکم الذی خلقکم من نفسٍ واحدةٍ وخلق منها زوجها وبثّ منهما رجالاً کثیراً ونساءً » (۱)

ای خلکو ! له خپل ربه وویریږئ هغه ( رب ) چې تاسې یې له یوه نفسه ( چې آدم دی ) پیدا کړئ او له دې ( نفسه یې ) د هغه جوړه ( چې حواء ده ) پیدا کړئ او له دی دواړو څخه یې ډیر سړي او ښځې خپاره کړي دي .

همدا راز حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم ښځې د نارینه وو څخه ښودلی دي .

انما النساء شقائق الرجال » (۲)

بی شکه همدا خبره ده چې ښځې د سړیو اجزاوی جوړی دي .

باید وویل شي :

که د حقیقت او واقعیت له لحاظه د آدم او حواء ( علیهما السلام ) د خلقت مبدأ یوه ده نو همدا راز د دغو دواړو اولاده اونسل هم د هغو مبدأ او اصل ته منسوب دی او هغه داسې : که څه هم د دغو دواړو د اولادی د خلقت ماده نطفه ده مګر بیا هم د دوی اولاده چې کومه غذا ( له غلو ،

---

(۱) النساء - ۱ .

(۲) رواه احمد وابوداود والترمذی وغیرهم .

میوو ، سبزیجاتو او نورو څخه ) خوري نو په هغې کې د زمکی عناصر موجود دي او د سړي او ښځی نطفه د خوراکي موادو په خوړلو منځ ته راځي نو په دغه طریقه او ډول پکې د زمکی د عناصرو خلطیت او خواص موجود دي او د ډیرو قرآنی آیتونو لکه :

« یاایها الناس ان کنتم فی ریبٍ من البعث فانا خلقنکم من ترابٍ » الحج - ۲۱ .

« ومن ایته ان خلقکم من ترابٍ » الروم - ۲۰ .

« هوالذی خلقکم من طینٍ » الانعام - ۲ .

« انا خلقناهم من طینٍ لازبٍ » الصافات - ۱۱ .

او داسی نورو آیتونو اطلاق پر دی چې د انسانانو د خلقت ماده خاوره ده د حقیقت او واقعیت ښه لري . او بیا دا چې له نارینه وو او ښځو د خلقت مبدأ مشترکه او یوه ده او ټول د انسانی حیثیت او حققت لرونکی دي .

## ۲ - دینی او دنیوي ملکفیتونه :

څنګه چې د انسان د خلقت فلسفه او حکمت یوازی او یوازی د کایناتو د خالق عبادت او د هغه د هدایاتو او احکامو په مطابق ژوند کول دي نو په دغه اساس ښځه اونارینه د دینی او دنیوي مکلفیتونو په باب د مشترک دریځ او مشترک مسؤولیت لرونکی دی او دا په دې ډول چې څنګه له نارینه څخه د دینی امورو ، لکه : د لمانځه ، روژی ، زکات او حج د ادا کولو او د تبلیغ او جهاد د مسؤولیت او فریضی د سرته رسولو غوښتنه شوی ده همدا راز په دغو دینی چارو کې ښځه هم مسؤوله ګرځولی شوی ده .

بل څنګه چې نارینه د اسلامی اصولو اوهدایاتو په اساس په دنیوي

ساحه کې د بیع او شراء ( خرحول او رانیول ) اجاره ، رهن او توکیل کارونه او داسې نور کولای شي ښځې ته هم د اسلامی تعلیماتو په رڼا کې د کسب او عمل د لارې د مالی شتمنی د حصول حق ورکړی دی .

البته ښځه اونارینه د دینی او دنیوي مکلفیتونو په ساحه کې د خلقت او فطرت د خصوصیاتو اومشخصاتو له حیثه د خاصو حالاتو او خاصو مسؤولیتونو لرونکی دی .

دا چې نارینه او ښځه دواړه د دینی مکلفیتونو لرونکي دي الله تعالی د دواړو د نیکو عملونو د اجر داسې یادونه کړې ده :

« ومن یعمل من الصالحات من ذکرٍ او انثی وهو مؤمنٌ فاولئك یدخلون الجنة ولایظلمون نقیراً » (۱)

او هرڅوك چې له نارینه وو او ښځو له نیکو ( کارونو ) عمل وکړي حال دا چې هغه مؤمن وي نو دغه نیك کاران په جنت کې داخلیږي او په دوی به د نقیر په اندازه ظلم ونه کړ شي .

همدا راز الله تعالی د مؤمنو عابدو او صالحو نارینه وو او ښځو لپاره د مغفرت او لوی اجر داسې یادونه کوي :

« إن المسلمین والمسلمات والمؤمنین والمؤمنات والقانتین والقانتات والصادقین والصادقات والصابرین والصابرات والخاشعین والخاشعات والمتصدقین والمتصدقات والصائمین والصائمات والحافظین فروجهم والحافظات والذاکرین الله کثیراً والذاکرات اعد لهم مغفرة واجراً عظیماً » . (۲)

هغه چې ښځه د نارینه په نسبت خاص او استثنایی حالات لري هغه د حیض او نفاس حالات دي چې ښځه په دغه راز حالاتو کې د لمانځه او

---

(۱) النساء - ۱۲۳ .

(۲) الاحزاب - ۳۵ .

روژې له مکلفیت څخه معافه ده مګر بیا کله چې د حیض موده ( چې له دریو ورځو څخه لږه او د لسو ورځو څخه زیاته نه ده ) تیره شي نو هغه لمونځونه چې د دغه حیض په موده کې یې نه دي کړي د هغو قضایي وربانذي نشته . همدا راز د نفاس په موده کې ( چې د ماشوم د زیږیدلو له وخت څخه پیل کیږي او له څلویښتو ورځو څخه زیاته نه وي ) د دغې مودې قضا شوي لمونځونه قضایي نه لري ، البته د حیض اونفاس د مودې خوړلې شوې روژې چې د رمضان د میاشتې فرضي روژې وي هغه به د رمضان د میاشتې له وتلو څخه وروسته د کال په نورو ورځو کې ، که پرله پسې وي یا په متفرق صورت سره وي ونیسي او خپله دیني ذمه واري به ترسره کړي .

بل د ښځې دنیوي مکلفیتونه دي چې د نارینه وو په شان د کسب او عمل د لارې د مالي او مادي پانګې او شتمنې د حصول او ملکیت د حق خاونده ده یعنې همدغه د اسلام مقدس دین دی چې ښځې ته هم اجازه ورکوي چې د بیع او شراء معامله وکړي او د کسب او عمل د لارې خپلې مالي او مادي پانګې او شتمنۍ ته وده ورکړي .

الله تعالی ویلي دي :

« للرجال نصیبٌ مما اکتسبوا وللنساء نصیبٌ مما اکتسبن » (۱)

نارینه وو ته برخه شته په سبب د هغه عمل چې دوی کړی دی او ښځو ته برخه شته په سبب د هغه عمل چې دوی کړی دی .

البته ښځه د تجارت په غرض په یوازې صورت چې محرم ورسره نه وي لری ځای ته سفر نشي کولای ځکه اسلام دغه رازسفر چې په کې د ښځې پر عفت د تیري او خطر ویره وي اجازه نه ورکوي .

---

(۱) النساء - ۳۲ .

# د ښځې کار او عمل په کور اوټولنه کې

څنګه چې واقعیت دی نارینه او ښځه د خلقت او فطرت د ممتازو خواصو او مشخصاتو په لرلو یو د بل څخه توپیر لري . ښځه د جسمانی ترکیب او جوړښت له حیثه د لطافت ، ظرافت ، نازکی او کمزورتیا د خواصو اونارینه د نارینتوب د سختوالی ، قوت ، تحمل اومقاومت د خواصو لرونکی دی .

همدا راز د نارینه او ښځې ترمنځه د معنوي قـواوو اواستعدادونو ( لکه مزاج ، عاطفه ، عقل ، صبر او داسې نور ) له مخې هم فرق موجود دی او څنګه چې واقعیت دی د ښځې په معنوي قواوو کې عاطفه او د نارینه عقلی قوه غالبه ده . همدغه د ښځې عاطفه ده چې کله ماشوم یې په نیمه شپه او د خوب په اصلي وخت کې ویښ شي نو په ډېر شفقت او مهربانی په خدمت او حاجت کې یې شي او که بیا ماشوم یې د ناروغتیا او تکلیف له امله ناکراره وي نو بیا همدغه د عاطفی خاونده ده چې د خپل ماشوم په ناآرامی د نارامی احساس کوي ، ورته د جان او قربان خوری او پستنی خبری کوي او د علاج اوتداوی په هڅه کې یې شي او د خپلی بیخوبی اوناآرامی په فکر کې نه وي .

نو د پورتینو ذکر شویو جسمانی او معنوي مشخصاتو له مخې نارینه او ښځه په یوه درجه او یوه معیار سره نه دي او دواړه د یو شانته صلاحیتونو او مسؤلیتونو د اهلیت او قابلیت خاوندان نه ګڼل کیږي څکه هغه سخت کارونه ، لکه دهقانی ، نجاري ، حدادی ( آهنګري ) ، معماري ، تخنیکی ، ماشینی کارونه ، عسکریت او د هیواد د امنیت تأمینول او د حدودو حراست او مراقبت او داسی نور چې د جسمانی او معنوي طاقت په اساس د نارینه د لاسه کیدی شي دغه راز سخت کارونه

د ښځې د جسماني لطافت ، نازکي او کمزورتیا سره اشنایي او جورښت نه لري او همدا راز ښځه د کور له ساحې لرې د بهرنیو کارونو او سفرونو د سختیو د تحمل او له خطرونو څخه د ځان بچولو د توان خاونده نه ده نو د دغو حقایقو په اساس د ښځې اصلي واجب او مهم مسؤولیت چې د هغې د خلقت او فطرت د مقتضیاتو او د هغې د جسماني او معنوي خواصو سره مطابقت لري هغه د کور په محیط کې د هغې موجودیت او د هغې عمل دی . د ښځې لپاره همدغه د کور ساحه ده چې الله تعالی د حضرت خاتم الانبیاء ( علیه افضل الصلوات والتسلیمات ) پاکو ښځو ته ، سره د دې چې د رسالت د طهارت او عصمت په مدرسه کې روزل شوي ، داسې توصیه کوي او وايي :

« وقرن فی بیوتکن ولا تبرجن تبرج الجاهلیة الاولی واقمن الصلوة واتین الزکوة واطعن الله ورسوله » (۱)

دلته دا باید وویل شي چې کوم خاص خطاب د شرعي حکم په باب د حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم بیبیانو ته شوی د هغه حکم د محمدی امت د ښځو په باب عام دی او د هغه مراعات کول پر ټولو لازم دي .

همدغه راز حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم د کور په ساحه کې د ښځې داسې مسؤولیت ښیي او وايي :

« والمرأة راعیة علی بیت زوجها وولده وهی مسؤولة عنهم » (۲)

او ښځه د خپل میړه او د هغه د اولاد سرپرسته ده او له هغو څخه مسؤوله ده .

البته د ښځې مسؤولیت په خپل کورني محیط کې د کور انتظام پخلی کول ، کالي ګنډل ، کالي وینځل ، د کور د سامان او مال

---

(۱) الاحزاب – ۳۳ .

(۱) رواه البخاری ومسلم عن عبدالله بن عمر رضی الله عنهما – مشکوة المصابیح ۳۲۰ .

ساتل او د اولاد روزل دي او که بیا له کوره بهر د ضرورت او مصلحت له مخې په ټولنه کې کوم کار کوي نو د هغې د کار ساحې به د ماشومانو د روزنې ورکتون ، ښځینه خیاطي مؤسسې ، ښځینه روغتون ، د ښځینه طبې زده کړو مرکزونه ، د کور د تدبیر او د اولاد روزلو ښځینه ښوونځي او د ښځو په متعلق اختصاصي خدمتونه او فعالیتونه به وي .

البته په دغو پورتنیو ساحو کې د ښځې کار کول به د لاندنیو شرایطو په مراعات کولو سره وي :

١ - د ښځې کار کول د میړه په موافقې او اجازې سره وي .

٢ - له نارینه وو سره به اختلاط نه کوي .

٣ - د کوره به د حجاب او حشمت په جامه کې وځي .

٤ - عطر او نور بوي لرونکي مواد به په ځان نه مسي .

استاذ عقاد د مصر پیاوړی او مشهور لیکوال د نارینه او ښځې په باب داسې ویلې دي :

« ښځه له سړي څخه په ډیرو ظاهري او باطني خواصو کې امتیاز لري تر دې چې د دوی ترمنځه اختلاف په وینه ، د زړه په حرکاتو ، د تنفس په عوارضو ، د مغز په چاغوالي ، د دماغ په حجم ، د جسم په شکل او د آوازونو په نغمو او زمزمو کې موجود دی او دا گومان کیدلای شي چې ښځه سړی او سړی ښځه ده مگر د هغو کسانو په نزد داسې نه دی چې هغوی د حسن منکران او د بداهت مخالفان دي . بداهت او تجربت ( پوهه او تجربه ) د ښځې لپاره دا لاره رسموي چې هغه د نسل روزل دي او دا بې ارزښته او ناځیزه عمل نه دی ، او د سړي لپاره دا لاره رسموي چې هغه د ژوند مبارزه او حاکمیت دی او دا پرهغه باندې ډیروند کار نه دی او نه دا د هغه داسې برخه ده چې د هغې په سبب ورسره حسد وکړ شي » (١)

(١) المرأة فی التشریع الاسلامی ١٧ - والمطالعات فی الکتب والحیاة للعقاد

همدا راز ویلی یی دي :

« بی شکه ښځه د یوه خاص عاطفی تکوین ( جورښت ) خاونده ده او تکوین یی د سړي د تکوین په شان نه دی ځکه د زیږیدلي ماشوم ملازمت د ښځې اوماشوم د مزاجونو ترمنځه د تناسب غوښتونکي دي او دا د ښځی د انوثت ( ښځیتوب ) اصلي عامل دی چې دغه ښځه ژر د حس او عاطفی د تاثیر لاندي راځي او د عاطفی مننه کوي او د نارینه په شان صبر او تحمل نه کوي ځکه چې د عقل حاکمیت ، د فکر غلبی او د عزم کلکوالی ته انتظار کول آسان دي » . (۱)

همد راز الیکسیس کاریل د نارینه او ښځې ترمنځه د جسمانی خصوصیاتو اومشخصاتو یادونه کوي او وایی :

« دا د دواړو د بیلا بیلو خصوصیاتو اومشخصاتو د موجودیت په باب ناپوهی ده چې له ښځې څخه دفاع کوونکی په دغه عقیده دی چې باید دواړه جنسه یو شان زده کړه وکړي ، دواړو ته یو قسم اقتدار ورکړ شي او دواړه په یوه رنګ د مسؤولیتونو خاوندان وګرځول شي مګر حقیقت دا دی چې ښځې له نارینه وو څخه ډیر توپیر لري . د ښځې د بدن هر سلول د هغې د انوثت د خاصیت لرونکی دی . او ښایی ښځې خپل اهلیت ته د خپل طبیعت په مطابق وده ورکړي او د نارینه وو د تقلید هڅه ونه کړي ځکه د ښځو نقش د تمدن د پرمختګ لپاره د نارینه وو په نسبت ډیر ارزښتناك دی نو له خپلو ټاکلو وظایفو څخه دی مخونه نه اړوي او د خپلو ماشومانو له روزنی دی نه غافلی کیږي » (۲)

همدا راز دغه نوموړي په خپل کتاب ( انسان هغه مجهول ) کې ویلی دی :

---

(۱) التربية الإسلامية والمشكلات المعاصرة ۱۹۳ .

(۲) التربية الاسلامية والمشكلات المعاصرة ۱۹۳ .

د ښځې اومېړه ترمنځه اختلاف شته ، د هر يوه بدني جوړښت په خاص شکل او کيفيت سره دی او يو بل ته ورته نه دی . ښځه د اولاد روزلو وظيفه په غاړه لري ، ښايي د سړيو تقليد ونه کړي او د خپلو مسئوليتونو څخه غافله نشي » (۱)

بل د انګلستان پوه ( ساموېل سمايلس ) په خپل کتاب ( اخلاق ) کې وېلی دي :

« هغه نظام چې د ښځې کار او عمل په کارخانو او فابريکو کې ښيي او بيا که هغه په دغو ځايونو کې هرڅومره شتمنه شي نو نتيجه يې دا ده چې کورنی ژوند به يې ګډوډ ، کورنی ساختمان به يې خراب او اجتماعي روابط به يې شليدلي وي . اولاد به يې له روزنې څخه محروم ، د زوجيت محبت به يې له منځه لاړ شي او د نارو فکري او اخلاقي تاثيراتو سره به مخامخه شي » (۲)

## ۳ ميراث :

اسلام چې د حق اوعدالت دين دی دغه آسماني دين نارينه او ښځه دواړه د ميراثي حقوقو خاوندان ګڼلي دي يعنی څنګه نارينه د خپل مورث ( ميراث پرېښودونکی ) د متروکه مال څخه خپل ميراثي حق اخلي همدا راز ښځه هم د خپل مورث له متروکه مال څخه د خپل ميراثي حق اخيستونکې ده .

هو ! خبره دا ده چې نارينه او ښځه د خپلو ميراثي حقوقو په معيار کې سره مساوي او يو شان نه دي ، بلکې د نارينه ميراثي حق د ښځې له ميراثي حق څخه زيات دی .

---

(۱) توجيهات اسلاميه ۱۲۵ .

(۲) تربيه الاولاد في الاسلام ، ج ۱ ، ۲۶۹ مخ .

دا د ورور او خور ترمنځه د میراث حق دی چې د خور حق د ورور په نسبت نیم دی .

الله تعالی ویلي دي :

« یوصیکم الله فی اولادکم للذکر مثل حظ الانثیین » (۱)

او تاسې ته الله ستاسی د اولاد ( د میراث ) په باب کې حکم کوي ( چې کله تاسې مړه شئ ) نارینه ته ( له میراثه ) په مثل د دوه وو ښځو برخه ده .

همدا راز دا میړه او ښځه ده چې د میړه میراثي برخه د ښځې د میراثي برخې څخه زیاته ده .

الله تعالی ویلي دي :

« ولکم نصف ماترك ازواجکم ان لم یکن لهن ولد فان کان لهن ولد فلکم الربع مما ترکن من بعد وصیة یوصین بها او دین ولهن الربع مما ترکتم ان لم یکن لکم ولد فان کان لکم ولد فلهن الثمن مما ترکتم من بعد وصیة توصون بها او دین » (۲)

او تاسې ته نیم د هغه مال دی چې ستاسو ښځو پریښی دی ( او دا په هغه حالت کې ) که هغوی لره ولد نه وي ، نو که هغوی لره ولد وي نو تاسې ته څلورمه برخه له هغه مال څخه ده چې دوی پریښی دی پس ( له اداء کولو ) د وصیت څخه چې دوی په هغه سره وصیت کړی دی یا پس ( له اداء کولو ) د دَین ( چې په دوی وي ) . او شته دوی ( ښځو ) لره څلورمه له هغه ماله چې تاسی پریښی دی ( دا په هغه حالت کې ) که نه وي تاسی لره ولد ، نو که تاسې لره ولد و ، نو دوی ته اتمه له هغه مال څخه ده چې تاسې پریښی دی پس له ادا کولو د وصیت چې په هغه سره وصیت کوي یا پس له ادا کولو د دَین ( قرض چې پرتاسې وي ) .

---

(۱) النساء - ۱۱ . (۲) النساء - ۱۲

مطلب دا چي که ښځه مړه شوه او دغې ښځې اولاد نه درلود نو مېړه د ښځې له مال څخه نیم مال په میراث وړي او که ښځې اولاد درلوده (اعم له دې چې یو زوی یا یوه لور یا ډېر زامن او لوڼې وي) نو مېړه یې له متروکې څخه څلورمه برخه په میراث وړي ، او که د ښځې مېړه مړ شو او دغه مېړه اولاد نه درلود نو ښځه د مېړه له مال څخه څلورمه برخه په میراث وړي او که مېړه اولاد درلود نو بیا ښځه د مېړه له مال څخه اتمه برخه په میراث وړي .

البته د مېړه او ښځې د میراث برخه به د هر یوه د وصیت د عملي کولو او د دَین ( قرض ) له ادا کولو څخه وروسته ورکول کیدی شي .

دا چې په اسلام کې د میراث په برخو کې د نارینه برخه د ښځې له برخې څخه زیاته ده او ښځه د نارینه په نسبت نیمه برخه لري دا بې حکمته او بې مصلحته نه ده نو دا گومان دې ونشي او نه چاته د اعتراض حق شته چې ووایي : دا عدالت او انصاف نه دی چې نارینه له ښځې څخه زیاته دوه چنده میراثي برخه واخلي او ښځه چې یو ضعیف مخلوق دی او د نارینه په شان سخت کارونه نشي کولای هغې ته دې په نیمه میراثي حق ورکړ شي .

باید وویل شي چې د اسلام دغه میراثي قانون او حکم د عدالت او مصلحت په اساس دی ، ځکه ښځې ته چې د نارینه په نسبت نیم حق ورکول کیږي نو خبره دا ده چې پر ښځې باندې د نارینه په شان د خپل مال د نفقه کولو هیڅ مسؤولیت نشته او بل له مېړه څخه د مهر په اخیستلو سره د هغې د مالي حق د کمښت جبیره شوې ده او هر څه چې نارینه دی هغه د مالي لگښتونو مسؤولیت ور په غاړه دی چې هغه ښځې ته مهر ورکول او پر ښځې او اولاد باندې د مال انفاق او د ژوندانه د نورو ضروریاتو ترسره کول دي .

که واقعیت ته وکتل شي همدغه ښځه ده چې د ژوندانه په ټولو مرحلو کې د هغې نفقه په نورو باندی ده . له واده ځخه مخکې د هغې پر پلار او اولیاوو او د نکاح او ودیدلو څخه وروسته پر میړه باندی ده او هغه مال چې په میراث سره اخلي هغه خاص د هماغې حق او ملکیت ګڼل کیږي او میړه په هغه کې د ښځې له اجازې پرته د ملکیت او تصرف حق او اختیار نه لري . که د اسلام دښمنان په میراث کې د نارینه په نسبت ښځې ته نیم حق ورکول له عدالت او انصاف ، ترحم او همدردی څخه نه ګڼي نو ځواب یې هماغه و چې ترمخه ورکړ شو ولې دوی دی هم د انصاف او واقعیت له مخې نظر وکړي چې د دوی ترمنځه په همدغه اوسني وخت کې څه بی عدالتی نه ده چې د ښځو سره نه کیږي ، همدغه ښځې دي چې د همدغه اسلام دښمنو عناصرو او بیځایه انتقاد کوونکو له لاسه له خپلو حقوقو څخه محرومی دي او د دوی پر عفت او انساني کرامت باندی قسم قسم تیري او لوبې کیږي .

دا ګوستاف لوبون فرانسوي حق پیژندونکی دی چې د ښځې د میراثی حق په باب د اسلام د عدالت یادونه کوي او وایی :

« بیشکه په اسلامی شریعت کې د میراث مبادي چې قرآن بیان کړی د عدالت او انصاف په خورا لوی او لوړ مقام کې دی او هغه حق چې اسلام ښځو ته ورکړی دی هغه په خپلو قوانینو کې هیڅ نه وینو » (۱)

## ٤ - شاهدي :

دا یو حق او د یوی موضوع د حقیقت او واقعیت د څرګندولو او ښودلو په باب د نارینه او ښځې د شاهدی اظهار او بیان دی چې اسلام

---

(۱) المرأة فی التشریع الاسلامی ۲۵ - حضارة العرب ، ګوستاف لوبون ترجمه عادل زعیتر .

دغه د شاهدی مقام او مسؤولیت نارینه او ښځې دواړو ته ورکړی دی او د دواړو شاهدی ته چې د حق او عدالت په معیار سره وي په ډیر اعتبار او ارزښت قایل شوی دی مګر خبره دا ده چې د یوې موضوع او یوې معاملې د حقیقت د ښوولو په باب د اسلام مقدس دین د دوه وو نارینه شاهدي ښوودلی ده او که بیا دوه نارینه نه وي نو یو نارینه او دوې ښځې به شاهدي ورکوي او دا چې د یوه نارینه پرځای دوې ښځې شاهدي ورکوي او یوه ښځه د نارینه شاهد په بدل کې ښودلې شوې نه ده ، نو د دې خبرې علت او سبب دا دي چې د ښځې عقلي قوه او حافظه د نارینه په نسبت کمزورې ده او لیدلې حالت او اوریدلې موضوع څنګه چې واقعیت یې وي په حافظه کې یې تر ډیره پاتې کیدونکې نه وي او د هغې د دغې کمزورتیا سبب او علت د هغې بدنې کمزورتیا ده او دا دی د هغې د بدنې کمزورتیا عوامل او سببونه دي چې په لاندې ډول یې یادونه کیږي .

## ۱ - حیض :

حیض د ښځې هغه میاشتنی عادت دی چې ښځه هغه وینی او د هغې لږ موده درې ورځې او زیاته موده یې لس ورځې دی او که له لسو څخه اضافه شي نو هغې ته مستحاضه ویل کیږي او جلا احکام لري نو هغه ښځه چې ورباندې حیض راځي او د حیض په موده کې وینه ضایع کوي نو د وینې په ضایع کیدلو سره د هغې بدن له کمزورتیا سره مخامخ کیږي .

## ۲ - حمل :

هغه وخت چې د ښځې په رحِم کې ماشوم منځ ته راشي نو دغه

ماشوم د ښځې په رحِم کې د شپو او ورځو په تیریدلو سره په تدریجي توګه وده کوي او هرڅومره چې په تدریجي توګه لوییږي او وزن یې زیاتیږي په هماغه اندازه مور له تکلیف احساس کوي او د هغې د بدن د کمزورتیا سبب کیږي .

## ۳ - نفاس :

نفاس هغه حالت دی چې کوم وخت ښځه ماشوم وزیږوي نو ورځخه وینی جاري کیږي او شك نشته چې د وینی ضایعات د ښځې د بدني کمزورتیا سبب کیږي . همدغه د وینی ضایعات دي چې د کوم ناروغ وینه کمه او ژوند یې له خطر سره مخامخ وي نوورته وینه ورکول کیږي او ژوند یې له خطر څخه ساتل کیږي .

## ٤ - رضاعت او حضانت (ماشوم ته تی ورکول او غیږ کې نیول) :

ماشوم ته د مور تی ورکول او په غیږ کې د هغه روزل دي ( چې موده یې د احنافو په مذهب دوه نیم کاله او د نورو فقهاوو په نزد دوه کاله ښول شوی ده ) چې دغه مور د کورنی چارو د تدبیر او انتظام سربیره یې کوي او د ماشوم په روزلو کې شپه او ورځ د بی خوبی او ستومانی په حالت کې وي نو د هغې د بدني کمزورتیا سبب کیږي .

د ښځې د دغو پورتنیو حالاتو له جملې څخه حیض او نفاس هغه دوه حالته دي چې ښځه په دغو دواړو حالتونو کې د وینی ضایعات لري او د هغې رضاعت او حضانت هغه حالت دی چې هغه د ماشوم روزلو او د هغه سره بی خوبی کول او تکلیف ګالل دي او شك نشته چې د وینی ضایعات او بی خوبی کول او د تکلیفونو ګالل د ښځې د اعصابو په دستګاه او مرکز ( دماغ ) باندې تاثیر کوي او اعصاب کمزوري ګرځوي

او دا معلوم واقعیت دی چې د اعصابو په کمزورتیا سره د انسان عقلي قوه او حافظه کمزوری کیږي او بیا له هغه ښځه موضوع چې په سترګو یې لیدلی وي او یا د هغې په باب څه یې اوریدلي وي ، هیریدونکی وي او د هغې خاطره په حافظه کې یې نه پاتې کیږي .

نو همدغه د یوه نارینه پرځای د دوه وو ښځو شاهدي ورکول دي چې د اسلام مقدس دین د خلکو د حقوقو د نه ضایع کیدلو او د موضوع د پټ نه پاتې کیدلو په باب چې دوه نارینه شاهدان نه وي یو نارینه او دوې ښځې د دویم نارینه د نه موجودیت په صورت کې ښودلی دي .

هغه قرآني آیت چې په کې د یوه نایرنه او دوه وو ښځو له شاهدی ځخه یادونه شوی ده دا دی :

« واستشهدوا شهیدین من رجالکم فان لم یکونا رجلین فرجل وامرأتان ممن ترضون من الشهداء ان تضل احداهما فتذکر احداهما الاخری » (۱)

او شاهد ونیسئ تاسي ( په خپلو معاملو کې ) دوه شاهدان له سړیو ستاسي ( چې مسلمانان ، عاقلان ، بالغان او اصیلان وي ) پس که دوه نارینه ( شاهدان ) نه وو ، نو یو سړی او دوې ښځې دی وي له هغو کسانو څخه چې تاسي ورڅخه راضي کیږئ ( د عدالت له امله ) له شاهدانو ( دا دوې ښځې د دی لپاره دي ) که یوه له دی دواړو ( ښځو شاهدی ) هیره کړي نو هغه بله له دواړو به هغې بلې ( هیریدونکی ) ته ور په یاده کړي .

د دی خبری یادونه ضروري ده او هغه دا چې د ښځې شاهدي په حدودو او قصاص کې د قبلیدلو نه ده او هر څه چې حقوق دي په هغو کې د ده وو سړیو یا د یوه سړي او دوه وو ښځو شاهدي د قبول وړ ده برابره ده چې حق مال وي او یا مال نه دي ، لکه : نکاح ، طلاق ، وکالت،

---

(۱) البقرة - ۲۸۳ .

وصیت ، بیع ، اجاره ، رهن ( گروي ) ، هبه او ضمانت .

البته په هغو موضوعاتو کې چې په ښځو اړه لري ، لکه : ولادت ، بکارت او د ښځو نور عیوب او امراض ( ناروغی ) او د دغو موضوعاتو په باب نارینه وو ته معلومات نه وي نو بیا یوازې د ښځو شاهدي د قبول وړ ده او د ښځو د موضوعاتو په باب د یوې شاهدي هم تبلیدلای شي . (۱)

## ۵ - نصیحت او تبلیغ :

څنگه چې په ټولنه کې خلك د مختلفو ذهنیتونو او د پوهې او ناپوهې د متفاوتو درجو خاوندان دي نو ځینې د حق او واجب په مفهوم پوهیږي او ځینې د حق او وجاب د مفهوم سره اشنایی نه لري .

هغه چې د حق او واجب په مفهوم پوه دي هغه د ځان او د نورو خیر او ښیگڼې لپاره هڅه کوي . د خپل خالق د اوامرو تعظیم کوي او پر مخلوق شفقت لري . د قانون اطاعت کوي نو بې نظمي نه کوي . انسان محترم گڼي نو وربانډې ظلم نه کوي ، د ټولنې امنیت خوښوي نو د فساد کارونه نه کوي ، د هیواد مادي او معنوي پرمختگ غواړي نو خیانت نه کوي .

بالمقابل هغه چې د حق او واجب د مفاهیمو تشخیص نه کوي هغه نه د ځان او نه د نورو د خیر او مصلحت کارونه کوي او هر څه چې نفس یې غواړي هغه پسې هڅه کوي او عاقبت یې نه سنجوي او د خپل ځان او ټولنې د خیر په سوچ او هڅه کې نه اوسي ، بلکې تل د شر او فساد کارونه کوي او د ټولنې د ناآرامي او تشویش مصدر گرځي .

نو د دې لپاره چې د ټولنې افراد د حق او واجب په مفاهیمو پوه وي او ټول لکه د یوه بدن غړي واوسي او یو د بل د حقوقو احترام او یو د بل د خیر غوښتنه وکړي نو دا به هلته کیدی شي چې په ټولنه کې نصیحت

(۱) الهدایة - ج ۳ ، ص ۱۵۳ .

او تبليغ موجود وي ، د تبليغ او نصيحت له لارې خلك تنوير شي او پرخپلو حقوقو او واجباتو وپوهول شي .

په کورني محيط کې سړی او ښځه ( پلار او مور ) خپل اولاد ته ديني روزنه او ښوونه وکړي . هغوی د تعليم او نصيحت له لاری د خپل دين ، خپل هيواد ، خپلی ټولنی او د خپلی آزادی او حاکميت په باب د خپلو مسؤوليتونو سره اشنا کړي او ورته د ښو کارونو او خدمتونو لارښوونی وکړي .

همدا راز په ټولنه کې چې ديني نارينه عالمان اونور پوهان د مبلغ او معلم په صفت د دينی احکامو او مسايلو او د ژوندانه د نورو علومو او د چارو د ښه تنظيم ښوونه کوي او له حقوقو او واجباتو سره يې اشنا گرځوي ښځی هم مسؤوليت لري چې په ټولنه کې خپلو اسلامي خوېندو ته اسلامی تبليغ وکړي ، په ښځينه ښوونځيو ، مؤسسو او مرکزونو کې د هيواد لوڼو ته د اسلامی مبادیو ، اسلامي عباداتو ، اسلامی احکامو او مسايلو ، اسلامی اخلاقو او آدابو او اسلامی معاشرت په باب نصايح وړاندی کړي او د پاك قرآن او نبوي احاديثو په رڼا کې د ژوند کولو غوښتنه او هڅونه وکړي او د حقوقو او واجباتو د مفاهيمو او مقتضياتو سره يې ښه اشنا کاندي .

همدغه د محمدي امت ښه توب او فضيلت دی چې هغه په نصيحت او تبليغ ( الامر بالمعروف والنهی عن المنکر ) سره ښودل شوی دی .

« کنتم خير امة اخرجت للناس تامرون بالمعروف وتنهون عن المنکر وتؤمنون بالله » آل عمران ۱۱۰ . (۱)

تاسی ( ای محمدي امته ! ) غوره ( د هر هغه ) امت یئ چې د خلکو لپاره ايستلی شوی دی چې تاسې په نيکی سره حکم کوئ او له بدی څخه منع کوئ او په الله باندی ايمان لرئ .

---

(۱) آل عمران - ۱۱۰ .

البته په محمدي امت کي مسلمان نارينه اومسلمانه ښځه دواړه مشترک موجوديت او حيثيت لري او ټول د دغه امت غړي دي .

همدغه د نصيحت اوتبليغ ضرورت دی چي الله تعالی محمدي امت ته د هغه په باب داسي توصيه کوي او وايی :

« ولتكن منكم امةٌ يدعون الى الخير ويامرن بالمعروف وينهون عن المنكر واولئك هم المفلحون » . (۱)

او ( تل ) دی وي له تاسي يوه ډله چي خلك د خير ( اسلام ) په لوری بولی او په نيکـي سره ( خلكو ته ) امـر کوئ او له بدی څخه خلك ( منع کوئ او دغه ( آمرين بالمعروف او ناهين عن المنكر ) همدوی په مراد رسيدلي دي .

همدا راز الله تعالی امر بالمعروف او نهی عن المنكر ( نصيحت او تبليغ ) د مؤمنو نارينه وو او مؤمنو ښځو صفت ښيی او وايی :

« والمؤمنون والمؤمنات بعضهم اوليآء بعض يامرون بالمعروف وينهون عن المنكر ويقيمون الصلوة ويؤتون الزكوة ويطيعون الله ورسوله اولئك سيرحمهم الله ان الله عزيز حكيم » .(۲)

همدا راز حضرت پيغمبر صلی الله عليه وسلم نصيحت د اسلام اصلي روحيه او حقيقت ښيی او وايی :

« الدين النصيحة ثلاثاً قلنا لمن قال لله ولكتابه ولرسوله ولائمة المسلمين وعامتهم » (۳)

دين نصيحت ( خيرخواهی ) دی دری ځلی يې ( تکرار کړ ) مونږ وويل : د چا لپاره ؟ هغه وويل : د الله لپاره ، د هغه د کتاب لپاره ، د هغه د رسول لپاره د مسلمانانو د پيشوايانو لپاره او د عامو مسلمانانو لپاره .

---

(۱) ال عمران - ۱۰٤ . (۲) التوبة - ۷۱ .

(۳) رواه مسلم عن تميم الداری رضی الله عنه ، مشکوة المصابيح ٤۲۳ .

د الله لپاره نصیحت دا دی چې د هغه په وجود او واحدانیت ، د هغه په کمالیه وو او جمالیه وو صفاتو او د هغه په حاکمیت عقیده وشي ، عبادت یې وشي او په احکامو یې عمل وشي .

د الله د کتاب لپاره نصیحت دا دي چې د هغه په حقانیت عقیده رشي او د هغه په لارښوونو عمل وشي .

د رسول لپاره نصیحت دا دی چې د هغه په رسالت باندې ایمان راوړل شي او د هغه اطاعت وشي .

د پیشوایانو پاره نصیحت دا دی چې په نیکه طریقه د هغو اطاعت وشي او بې شرعي موجبه د هغه په ضد قیام ونشي .

د عامو مسلمانانو لپاره نصیحت دا دی چې د هغو سره د اسلامي ورورولی اړیکی ټینگی شي ، د حقوقو یې احترام وشي اود ضرورت په وخت ورسره مرسته او ښیگڼه وشي .

البته په دغو موضوعاتو د خلکو پوهول په نصیحت کیږي او نصیحت د هر نارینه او ښځې له مسؤولیت څخه دی .

همدا راز حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم په ټولنه کې د شر او فساد د مخنیوی او د ټولنی د سلامتیا مثال د کشتی د خلکو د حال سره تشبیه کړی دی که چیرې په کشتی کې د شر او فساد د عناصرو مخنیوی وشو ، نوکشتی به روغه او سورلی به یې روغ رمت پاتی شي او که نه ، نو کشتی به په اوبو کې ډوبه او خلك به یې د هلاکت سره مخامخ شي .

له النعمان بن بشیر څخه روایت دی وایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلی دي :

« مثل المدهن فی حدود الله والواقع فیها مثل قوم استَهَمُوا سفینةً فصار بعضهم فی أسفلها وصار بعضهم فی أعلاها فكان الذی فی أسفلها یمرُّ

بالماء على الذين فى أعلاها فتأذوا به فأخذ فأسا فجعل ينقر أسفل السفينة فأتوه فقالوا ما لك قال تأذيتم بى ولابد لى من الماء فإن أخذوا على يديه أنجوه ونجوا أنفسهم وإن تركوه أهلكوه وأهلكوا أنفسهم » . (۱)

د الله په حدودو کې مُدهِن ( سستی کوونکی له بدی څخه نه منع کوونکی ) او په کې لوېدونکی ( گناه کوونکی ) د هغه قوم په شان دی چې د پچی په اچولو ( قُرعه کشی ) پر کشتی باندې ناست وي ، د دوی ځینو ته د کشتی لاندې طبقه او ځینو ته یې د کښتی.پورته طبقه ورسیږي ، نو هغه شخص چې د کشتی په لاندې طبقه کې دی او اوبو سره پر هغو کسانو چې د کشتی په پورته طبقه کې دي مرور وکړي ( تیر شي ) نو په هغه سره ( پورتني کسان ) اذیت ومومي نو بیا هغه ( چې د لاندې طبقی دي او له پورتنی څخه اوبه اخلي ) تبر واخیست او د کشتی د لاندنی طبقی په سوری کولو پیل وکړ نو بیا د پورتنی طبقی کسان ورته راغلل ، هغه ته یې وویل : څه دي تا لره ( چی دا کشتی سوری کوې ) هغه وویل : تاسی له ما څخه اذیت ولید نو زه یې له اوبو اخیستلو بله چاره نه لرم نو که هغو ( د پورتنی طبقی کسانو ) د هغه لاسونه ونیول (پرې یې نښود چې کشتی سوری کړي) نو هغه او خپلو ځانو ته یې نجات ورکړ ( له ډوبېدلو او هلاکیدلو څخه ) او که یې پرېښود ( او هغه کشتی سوری کړه ) نو هغه او خپل ځانونه به هلاك کړي .

همدا راز د ټولنی حالت د کشتی حالت ته ورته دی او د ټولنی خلك د کشتی د سورلیو په شان دي ، که چیری څوك په ټولنه کې د فساد او ضرر عمل وکړي او ( ... ) فاسد او ضرري عمل د ټولنی د موجودیت کشتی زیانمنه او د فساد په څپو کې ډوبېږي او خلك یې له تباهی سره مخامخ

(۱) رواه البخاری ، مشکوة المصابیح ٤٣٦ .

کیږي نو ښایی د ټولنی د دعه فاسد او ضرري عنصر د شر او فساد مخه ونیوله شي او د نصیحت له لاری اصلاح او د ټولنی صالح او خدتګار غړی وګرځول شي ، البته په ټولنه کې د شر او فساد مخنیوی او د شر او فساد خاوندانو ته د خیر او مصلحت توصیه کول د ټولنی د هر نارینه او هری ښځی اسلامی او اجتماعي مسؤولیت دی او باید هیڅوك له خپل اصلاحي مسؤولیت څخه غفلت اوتقصیر ونه کړي .

٦ - ښځو ته د دین او د ژوند د ضروریاتو ښوونه :

د اسلام دښمنانو د دغه آسماني دین د حق او انصاف له دریځ اَونیك تعامل څخه چې د ښځو په باب یې لري سترګی پټوي او د اسلام د ... تیقت او قدسیت روښانه او ځلانده څیری ته د خپلو ناوړو تبلیغاتو او بی ځایه انتقادونو خاوری او ایری شیندي او د شك او تردد په پردی د هغې پټول غواړي مګر دوی د اسلام د حقانیت او عظمت په مقابل کې هیڅ شی نشي کولای او د هغه روښانه او ځلانده لمر په ګوته نشي پټولای .

همدغه د دین او د دنیا د علمي زده کړو په باب د اسلام حق دین دی چې ځنګه یې له نارینه وو څخه د دینی زده کړی او د ژوند په طریقو او چارو د پوهیدلو غوښتنه کړی همدا راز یې ښځی هم مکلفی ګرځولي چې دوی د اسلامي عقایدو ، اسلامي عباداتو ، اسلامي اخلاقو او آدابو او د نورو دیني امورو او فقهي مسایلو او د کور د ښه تدبیر او انتظام او د اولاد د روزلو او د خپل میړه ، ټولنی او د هیواد د حقوقو د مراعات کولو او اداء کولو په باب علمي زده کړی ولري او د دغو ټولو په باب خپلی ذمه واری اومسؤولیتونه په ښه توګه ترسره کړي .

همدغه پر نارینه او ښځی د انسان په عنوان د علمي فضیلت او مقام د احسان کیدلو حقیقت دی چې د عظیم الشان قرآن د لومړنیو آیتونو «

اقرا باسم ربك الذي خلق . خلق الانسان من علق . اقرأ وربك الاكرم الذي علم بالقلم . علم الانسان ما لم يعلم » (١)

په نزول سره اعلان شوی دی او د ټولو انسانی افرادو که نارینه دي، او که ښځې د ټولو د د دنیوي او اخروي ښیګڼو حصول او تضمینیدل د علم په رڼا کی کیدلی شي .

همدغه د ښځو د علمي زده کړو ارزښت او مسؤولیت دی چې د اسلام په اوله کی کومو ښځو چې د حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم سره د اسلام په باب بیعت کاوه ، نو دغه الهی پیغمبر به د دوی سره هغه وخت بیعت کاوه چې لومړی به یې دوی ته د بیعت د شرطونو ښودنه وکړه او دوی به یې وازمایل څو چې د دوی د ایمان صدق معلوم شي او د دوی بیعت په پوهی سره ګټور تمام شي .

الله تعالی په دغه باب داسې ویلي دي :

« یایها الذین امنوا اذا جاءکم المؤمنات مهاجرات فامتحنوهن الله اعلم بایمانهن فان علمتوهن مؤمنات فلا ترجعوهن الی الکفار لاهن حل لهم ولاهم یحلون لهن واتو هم ما انفقوا ولاجناح علیکم ان تنکحوهن اذا اتیتموهن اجورهن ولاتمسکوا بعصم الکوافر وسئلوا ما انفقتم ولیسئلوا ما انفقوا ذلکم حکم الله یحکم بینکم والله علیم حکیم » (٢)

ای مؤمنانو ! کله چې تاسې ته مؤمنی هجرت کوونکی ( ښځې ) راشي نو هغوی وازمویئ ، الله ته د دوی ایمان ښه معلوم دی ، نو که تاسې دوی وپیژنئ مؤمنانی نو دوی بیرته کافرانو ته مه لیږئ ، دوی هغوی ( کافرانو ) ته حلالی نه دي او هغوی ( کافران ) دوی ته حلال نه دي ، او ورکړئ هغو ( د ښځو میړونو ) ته هغه څه ( مهر ) چې لګولی یی دی او پرتاسې باندې څه ګناه نشته چې هغوی په نکاح کړئ په دې

---

(١) العلق - ١ - ٥ . (٢) الممتحنة - ١٠ .

شرط كله چي تاسي هغوی ( ښځو ) ته مهرونه یی ورکړئ او تاسی-د کافرانو ښځو په عصمت منګولی مه نښلوئ ( کافری ښځی په نکاح کي مه ساتئ ) او وغواړئ تاسی هغه څه چي تاسی ( پر دغو کافراتو ) لګولی دی او دوی ( کافران ) دي وغواړئ هغه څه چي دوی ( له مهرونو پر دغو مهاجرو ښځو ) لګولی دی . دا ( مذکوره احکام ) د الله حکم دی هغه ( الله ) ستاسی په منځ کي ( په دغه سره ) حکم کوي او الله ښه پوه ښه حکمت لرونکی دی .

دا د مهاجرو ښځو په باب د ازمویلو حکم و چي ورځخه یادونه ووه او حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسم د مهاجرو ښځو امتحان په دی ډول کاوه :

« بالله ماخرجت من بغض زوج ، وبالله ماخرجت رغبة عن ارض وبالله ماخرجت التماس الدنیا ، وبالله ماخرجت الا حبا لله ورسوله » (١)

په الله سوګند ، زه د میړه د بغض ( دښمنی ) له امله وتلی نه یمه ، په الله سوګند ، ما د (خپلی) زمکی (هیواد) ځخه مخ نه دی اړولی ، په الله سوګند ، زه د دنیا په هیله وتلی نه یمه او په الله سوګند ، زه وتلی نه یمه مګر خاص د الله او د هغو د رسول د محبت لپاره .

## د ښځو بیعت :

کله چي به ښځی د هجرت د باعث له امله وازمویلی شولی نو بیا به د بیعت په شرایطو وپوهولی شوی .

الله تعالی ویلی دي :

(١) رواه ابن جریر بسنده ثم رواه من وجه آخر عن الاخر بن الصباح به ، وكذا رواه البزار من طريقه وذكر فيه ان الذى كان يحلفهن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم له : عمربن الخطاب رضى الله عنه وقال مجاهد : « فامتحنوهن » ( فسئلوهن عما جاء بهن ) تفسير ابن كثير ، ج ٤ ، ص ٣٥١ ، طبع دارالمعرفة - بيروت .

« يا أيها النبي اذا جاءك المؤمنات يبايعنك على الا يشركن بالله شيئاً ولايسرقن ولايزنين ولايقتلن اولادهن ولايأتين ببهتانٍ يفترينه بين ايديهن وارجلهن ولايعصينك فى معروفٍ فبايعهن واستغفر لهن الله ان الله غفورٌ رحيمٌ » (١)

اى نبى ( اى زما پيغمبره ! ) كله چې تاته مؤمناني ښځې راشي چې له تا سره بيعت كوي په دې شرط چې دوى به د الله سره هيڅ شى نه شريكوي او نه به دوى غلا كوي او نه به دوى زنا كوي او نه به دوى خپل اولاد وژني او نه به دوى په دروا‌غو سره راتله كوي چې دوى يې د خپلو لاسونونو او خپلو پښو په منځ كې جوړوي ( يعنى له خپله ځانه ) او نه به دوى په معروف ( ښه چارو ) كې له تا څخه نافرماني كوي نو ته له دوى سره بيعت وكړه او دوى ته له الله څخه بخښنه وغواړه بيشكه الله ښه بخښونكى ډير رحم لرونكى دى .

حضرت پيغمبر صلى الله عليه وسلم د دغه قرآني آيت په حكم له ښځو سره بيعت كاوه او د بيعت د شرايطو په باب يې له ښځو څخه تعهد اخيست .

« قال الامام احمد حدثنا ابراهيم بن ابى العباس حدثنا عبدالرحمن بن عثمان بن ابراهيم حدثنى ابى عن أمه عائشة بنت قدامة قالت : أنا مع أمى رائطة ابنة ابى سفيان الخـزاعى والنبى يبائع النسوة ويقول :

« اباىعكن على أن لاتشركن بالله شيئاً ولاتسرقن ولاتزنين ولاتقتلن اولادكن ولاتأتين ببهتانٍ تفترينه بين ايديكن وأرجلكن ولاتعصينني فى معروفٍ » قلن نعم ( فيما استطعتن ) فكن يقلن وأقول معهن وأمى تقول لى : اى بنية ! نعم فكنت أقول كما يقلن » (٢)

---

(١) الممتحنة - ١٢ .

(٢) تفسيرالقران العظيم للامام اسماعيل بن كثير ، ج ٤ ، ص ٣٥٢ - ٣٥٣ طبع دارالمعارفة - بيروت .

د امام احمد ( رحمه الله ) په روایت عایشه بنت قدامة ویلی دي : زه د خپلې مور رائطة ابنة سفیان الخزاعیة سره وم او پیغمبر له ښځو سره بیعت کاوه او ویل یې :

« زه له تاسې سره په دې بیعت کوم چې تاسی به د الله سره هیڅ شی نه شریکوئ او غلا به نه کوئ او زنا به نه کوئ او خپل اولاد به نه وژنئ او په دروغو سره به تلنه نه کوئ چې د خپلو لاسونو او خپلو پښو په منځ کې یې جوړ کړئ ( یعنی له خپله ځانه ) او په ښو چارو کې به زما ځخه نافرمانی نه کوئ » هغوی وویل : هو ! ( نه یې کوو ) په هغه څه کې چې تاسی توانیږئ ، نو هغوی به ویل او ما به د هغوی سره ویل او مور به می ویل : ای بچینه ! هو ! نو ما به هغه څه ویل چې هغوی به ویل .

## د ښځو پوښتنی :

کومه ښځه به چې د عهد په کوم لفظ نه پوهیده ، نو هغې به د لفظ په باب پوښتنه کوله .

امام احمد ( رحمه الله ) له سلمی بنت قیس ځخه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم له خاله گانو ځخه وه ، روایت کوي چې هغی ویلی دي :

« جئت رسول الله صلی الله علیه وسلم نبائعه فی نسوة من الانصار فلما شرط علینا أن لاتشرك بالله شیئا ولاتسرق ولاتزنی ولانقتل اولادنا لاتأتی ببهتان نفترنیه بین ایدینا وارجلنا ولاتعصیه فی معروف قال : « ولا تغششن ازواجکن » قالت فبایعناه ثم انصرفنا ، فقلت لامرأة منهن : ارجعی فسئلی رسول الله صلی الله علیه وسلم : ما غشّ أزواجنا قال : فسألته فقال : « تأخذ ما له فتحابی غیره » (۱)

---

(۱) تفسیرالقران العظیم للامام اسماعیل بن کثیر ، ج ٤ ، ص ۳۵۲ - ۳۵۳ ، طبع دارالمعارفة - بیروت .

رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغلمه د هغه سره مو د انصارو د ښځو په ډله کې بیعت کاوه ، کله چې هغه پر مونږ دا شرط کړ چې د الله سره به هیڅ شی نه شریکوو ، او غلا به نه کوو ، او زنا به نه کوو ، او خپل اولاد به نه وژنو ، او دروغ به د خپلو لاسونو او خپلو پښو په منځ کې نه جوړوو ( یعنی د ځانه به څه نه وایو ) او په نیکو چارو کې نافرمانی به نه کوو او دا یې هم وویل : له خپلو میړونو سره به تګي نه کوئ ، نو هغې وویل : نو بیا مونږ د هغه سره بیعت وکړ بیا ورځخه راغلو نو ما د دغو ښځو یوې ښځې ته وویل : بیا ورشه او د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وکړه چې زمونږ د میړونو سره تګي څنګه ده ؟ وایې : نو ورځخه یې پوښتنه وکړه نو ویې ویل : مال به یې اخلی او د بل سره به محبت کوی » .

د هجرت په اتم کال چې مکه فتحه شوه نو د مکې د فتحی په ورځو کې یو شمیر ښځی غونډی شوی او حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم د هغوی غونډی ته ورغی نو ابن عباس رضی الله عنهما روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم عمربن الخطاب رضی الله عنه ته امر وکړ او ورته یې وویل : « قلن لهن إن رسول الله صلی الله علیه وسلم یبایعکن علی ان لاتشرکن بالله شیئاً »

هغوی ته روایه : بیشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم تاسې سره بیعت کوي چې الله سره هیڅ شی مه شریکوئ . هند بنت عتبة بن ربیعة چې د حضرت حمزه نس یې څیرلی و او په جامه کې یې ځان پیچلی وه او نه پیژندل کیده وویل :

« کیف تقبل من النساء شیئاً لم تقبله من الرجال ؟! »

څرنګه له ښځو څخه یو شی قبلوی او د سړو څخه دی قبول کړی نه دی ؟!

رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وکتل او عمر ته یې وویل :

« قلن لهن : ولایسرقن »

ووایه دوی ته : غلا ونه کړئ .

هند وویل :

« والله إنی لأصیب من ابی سفیان الهنات ما ادری أیحلهن لی أم لا »

په الله سوگند ، بی شکه زه د ابوسُفیان له مال څخه اخلم نه پوهیږم چې هغه ماته بخښی یا نه ؟

ابو سُفیان وویل :

« ما أصبت من شیءٍ مضی او قد بقی فهو لك حلال »

هغه څه چې تا اخیستی یا یی اخلی هغه تاته حلال دي .

په دغه وخت رسول الله صلی الله علیه وسلم وخندل او هغه یې وپیژندله . بیا یې وویل :

« ولایزنین » دوی دی زنا نه کوي .

هند وویل :

« یارسول الله ! وهل تزنی الحُرَّة ؟ »

ای د الله رسوله ! آیا اصیله زنا کوي ؟!

وبې ویل :

« لا والله ما تزنی الحُرَّة »

داسی نه ، په الله سوگند چې اصیله زنا نه کوي .

بیا یې وویل :

« ولایقتلن اولادهن »

دوی دی خپل اولاد نه وژني .

هند وویل :

« وهل ترکت لنا ولداً الا قتلتهم یوم بدر ، ربینا هم صغاراً قتلتهم کباراً »

آیا تا مونږ ته اولاد پریښی مګر دا چې تا هغوی د بدر په ورځ وژلی دی ، مونږ واړه ورورژل او تا لویان ووژل . (۱)

دا د عبدالله بن مسعود ښځه زینب ده چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم ځخه داسې پوښتنه کوي او وایی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلي دي :

« تصدقن یا معشرالنساء ولو من حلیکن »

ای د ښځو ټولګیه ! تاسې صدقه وکړئ اګر که ستاسې له ګانې ځخه وي .

زینب وایی :

نو زه عبدالله ته ورغلمه او ورته مې وویل : ته تش لاسی ( فقیر ) یې او رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته د صدقې امر کړی دی نو ته ورشه اوِ ورځخه پوښتنه وکړه نو که دا له ما ځخه روا کیږي ( چې تاته یې درکړم ) او که نه ، له تاسې پرته نورو ته به یې ورکړم .

هغې وویل : ماته عبدالله وویل بلکی ته ورشه .

هغې وویل : نو زه لاړم ګورم چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په دروازه کې د انصارو یوه ښځه هم وه ، زما او د هغې حاجت یو و .

هغې وویل : رسول الله صلی الله علیه وسلم ته هیبت ورکړی شوی دی .

هغې وویل : نو بلال ووت او هغه مونږ ته راغی ، نو مونږ هغه ته وویل : ته رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورشه او ورته خبر ورکړه چې په دروازه کې دوې ښځې دي له تا ځخه پوښتنه کوي چې آیا له دوی ځخه پر میړونو او پر هغو یتیمانو چې د دوی په غیږ کې دي صدقه روا کیږي او هغه مه خبروه چې مونږ ځوك یو ؟

هغې وویل : بلال رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دننه شو اوِ له هغه ځخه یې پوښتنه وکړه ، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل :

---

(۱) مختصر تفسیر ابن کثیر : المجلد الثالث ٤٨٨ .

« من هما ؟ » دا دواړه څوک دي ؟

هغه ( بلال ) وويل : يوه د انصارو ښځه او بله زينب ده .

نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وويل :

أى الزيانب ؟ د زينبونو کومه يوه ده ؟

هغه ( بلال ) وويل : د عبدالله ښځه ده .

نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وويل :

« لهما أجران : اجرالقرابة واجرالصدقة » (١)

« دواړو ته دوه اجره دي : يو د خپلوی اجر او بل د صدقی اجر » .

## د ښځو علمي مجالس :

د رسول الله صلى الله عليه وسلم په عصر د ښځو لپاره علمي مجلسو ته جوړيدل اوالهی پيغمبر به هغوی د دين چاری او احکام ښوول .

په صحيح البخاری کې له ابو سعيد الخدری څخه روايت دی وايي چې ښځو پيغمبر صلى الله عليه وسلم ته وويل :

« وغلبنا عليك الرجال فاجعل لنا يوما من نفسك فوعدهن يوماً يعظهن فيه فوعظهن وأمرهن فكان فيما قال : ما منكن امرأة تقدم ثلاثة من ولدها إلا كان لها حجابا من النار . فقالت امرأة واثنين فقال واثنين » (٢)

ستا په باب پر مونږ باندی نارينه غالب شوي نو ته له خپله ځانه مونږ ته يوه ورځ وټاکه ، نو هغوی ته يې د يوی ورځی چې په کې ورته نصيحت وکړی وعده ورکړه نو هغوی ته يې نصيحت او ورته يې امر وکړ نو له هغه څه چې هغوی ته يې وويل دا وو :

« نشته له تاسی څخه هيڅ ښځه چې هغه دری اولاده وړاندی کړي ( دری

---

(١) رواه البخاري ومسلم ولفظه لمسلم .

(٢) رواه البخاری - باب : هل يجعل للنساء يوم على حدة فى العلم ؟

اولاد یی مړه شي ، مګر هغه به د دې لپاره له اور څخه حجاب وي نوبوی ښځی وویل : که دوي وي ؟ نو الهی پیغمبر وویل دوه هم .

## ښځو ته د لیك او لوست ښودل :

د بلا ذری په - فتوح البلدان - کې راغلی دي چې أم المؤمنین حفصة بنت عمر بن الخطاب رضی الله عنهما د جاهلیت په عصر کې له یوی لیکوالي ښځی څخه چې په الشفاء العدویة سره نومیدله د لیك زده کړه کوله او بیا چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په نکاح کی شوه نو دغه الهی پیغمبر ورڅخه غوښتنه وکړه چې ورته حُسن خط وښیی .

همدا راز د ابوداود په سُنن کې له الشفاء بنت عبدالله څخه روایت دی وایي :

« دخل علیّ رسولُ الله صلی الله علیه وسلم وأنا عند حفصةً فقال الا تعلمین هده رقیة النملة کما علمتیها القراءة والکتابة »

پر ما باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم داخل شو او زه د حفصه سره وم نو ویې ویل : آیا دغې ته د میږه دم نه ښیی څنګه چې تا ورته لوست او لیکل ښودلي دي .

## ښځو ته د میړه د اطاعت ارزښت او فضیلت ښودل :

بزاز او طبرانی روایت کوي چې یوې ښځې وویل :

« انا وافدة النساء الیك »

زه تاته د ښځو له خوا راغلی یم .

دغی ښځی په جهاد کې له نارینه وو د اجر یادونه وکړه ، بیا یې داسې وویل :

« فما لنا من ذلك ؟ » نو مونږ ته د همه څخه څه دی ؟

نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ووېل :

« أبلغي من لقيت من النساء أن طاعة الزوج واعترافاً بحقه يعدل ذلك وقليل منكن يفعله » .

له ښځو څخه هر يوې سره چې مخامخ شوی هغې ته دا ورښوه چې د مېړه اطاعت او د هغه پر حق اعتراف کول د دې ( جهاد ) سره برابری کوي او له تاسې لږی دا کوي .

## ښځو ته د مېړه د حق ښودل :

دا د صفوان بن المعطل ښځه ده چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راځي او ورته عرض کوي :

« زما مېړه صفوان بن المعطل چې لمونځ کوم ما وهي ، او چې روژه نيسم پر ما روژه خوري او هغه د سبا لمونځ نه کوي ترهغه چې لمر وخيژي .

صفوان چې د پيغمبر صلى الله عليه وسلم په نزد حاضر شو نو الهی پيغمبر ورڅخه پوښتنه وکړه نو صفوان داسې ووېل :

دا چې وايي : ما پر لمانځه وهي نو د دې سبب دا دی چې هغه دوه سورتونه لولي او ما منعه کړی ده .

نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ووېل :

« لو كانت سورة واحدة لكفت الناس »

که يو سورت وي نو خلکو ته کافی دی .

او دا چې وايي : پر ما باندی روژه خوري ، دا نفلی روژه نيسي او زه ځوان سړی يم او صبر نشم کولای .

نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ووېل :

« لاتصوم امرأة إلا بإذن زوجها »

ښځه دی روژه نه نيسي مگر د مېړه په اجازی .

او دا چې وايې : زه لمونځ نه کوم ترهغه چې لمر وخيږي نو مونږ داسې کورنی يو چې مونږ پر همدغه پيژندل شو يو ( يعنی دا زمونږ عادت دی او سبب يی دا و چې دوی ټوله شپه اوبه ورکولی ) نو مونږ نه شو ويښيدلای ترهغه چې لمر وخيږي .

نو الهی پيغمبر (ص) وويل :

« فاذا استيقظت يا صفوان فصل »

نو کله چې ويښ شوی ای صفوانه ! لمونځ وکړه . (۱)

## د غُسل ښودل :

دا يوه ښځه ده چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راځي او له هغه څخه د غُسل په باب پوښتنه کوي او رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته د غُسل طريقه ښيي . (۲)

دا د انصارو ښځې دي چې حضرت پيغمبر صلی الله عليه وسلم د هغوی د ديني زده کړې توصيف کوي .

مسلم د عايشې رضی الله عنها څخه روايت کوي چې حضرت پيغمبر صلی الله عليه وسلم د انصارو د ښځو په باب داسې ويلی دي :

« نعم النساء نساء الأنصار لم يكن يمنعهن الحياء أن يتفقهن فی الدين » (۳)

ښې ښځې د انصارو ښځې دي چې حياء د دوی مانع نه کيده چې به دين کې پوهه حاصله کړي .

لنډه دا چې د اسلام مقدس دين ښځو ته د داسې علمي زده کړې اجازه ورکوي چې د هغه په رڼا کې د خپلو ديني احکامو او خپلو دنيوي

(۱) د دی روايت ابوداود او ابن ماجة کری دی ، مشکوة المصابيح ۲۸۲ .
(۲) بخاري : کتاب الحيض ٤٥ . (۳) بخاري : کتاب الحيض ٤٥ .

واجباتو اومسؤوليتونو سره اشنایی پیدا کوي او د زده کړې په وخت د خپل حجاب ، عفت او د زده کړې د آدابو او شرایطو مراعات کوي .

دا دی په لاندې ډول د ځینو ښځینه وو له علمي او دیني زده کړو او طبي خدمتونو ښخه یادونه کیږي :

- دا د صقلیه فاتح اسد بن الفزات دی چې لور یې د قران او دینی علومو زده کړه کوله .

- دا محمد بن الاغلب امیر دی چې معلم د ده په قصر کې د ورځې له خوا هلکانو ته او د شپې له خوا نجونو ته دینی تعلیم ورکاوه .

- دا علیة د مهدی عباسی خلیفه لور او دا ولاده د المستکفی بالله عباسی خلیفه لور ده چې دواړه د دینی علومو په زده کړه کې د ښه شهرت او لوړ مقام خاوندانی وی .

- دا زینب د بنو اود د کورنی د سترګو د بیماریو معالجه طبیبه وه او بل دا أم الحسن بنت القاضی ابی جعفر الطنجالی ده چې په طب کې د ډیر شهرت خاونده وه .

- بل حافظ بن عساکر چې د حدیث له راویانو څخه دی ، ویلی دي چې د ده د ښځینه و شیوخو او اساتذه و شمیر څه د پاسه اتیا تنو ته رسیږي .

- دا د سعید بن المسیب د تابعینو د ستر عالم او پیشوا لور ده چې په علم ، دیانت اوتقوی کې یې ډیر شهرت درلود او د اسلامی تاریخ د هغې په علمي مقام ، دیانت او تقوی ډیره ویاړنه کوي او د مسلمانانو ښځو لپاره د اقتدا او پیروی ښه مثال ګڼل کیږي .

د دې لپاره چې مسلمانی ښځې په دې عصر کې د اسلام د دښمنانو ( لکه صهیونیت ، صلیبیت ، دهریت ، اباحیت او نور مادي مکتبونه او باطل فلسفی مذهبونه ) له شر او فساد څخه خوندي وي ښایی د دغو دښمنانو د انحرافی او استعماري هلوځلو او حیلو په مقابل کې خپله

پوهه او بیداری له لاسه ورنه کړي او د پاك قرآن اونبوي سُنتو په رڼا کې چې د هدایت او سعادت دوه روښانه مشعلونه دي او د انسان د دنیوي او اُخروي کامیابی تضمین کوي ژوند او عمل ولري ځکه همدغه د اسلام دښمنان دي چې مادیات او ښځې د خپلو استعماري غرضونو لومې ګرځوي او په دغو وسایلو سره د مسلمان اسلامی شخصیت او د مسلمانانو اجتماعي حیثیت د فساد او تباهی سره مخامخ کوي .

دا د استعمارګرانو یو مشر دی چې د محمدي امت د له منځه وړلو په باب د خپلی دښمنانه نظریې داسې څرګندونه کوي او وایې :

« شراب او سندرغاړی چې ترکومې اندازې پورې د محمدي امت په نړلو کې نقش لري دغه کار د زرو توپونو په وسیله نشي ترسره کیدلای نو تاسی دغه امت د مادیاتو اونفساني شهواتو په سمندر کې ډوب کړئ » (۱)

همدا راز د فاجرو ماسونیانو یو مشر داسې ویلی دي :

« مونږ باید له ښځې څخه کار واخلو ځکه کوم وخت چې ښځې مونږ ته لاس اوږد کړي په حرامو بریالي شوي یو او د اسلام د غازیانو د لښکرو د تیت و پرك کولو لپاره مؤثر عامل دی » (۲)

همدا راز د صهیون د حکماوو په پروتوکولو کې راغلی دي :

« ښایی په هرځای کې د اخلاقو د نړولو هلی ځلی وکړو چې مونږ ته پر دغو ځایونو د حاکمیت فضا مساعده شي ، فروید له مونږ څخه و او هغه د جنسی علایقو عرضه کوونکی و څو په دغه وسیله د هیڅ زلمي په نظر کې مقدس شی نه وي او د هغه کوشش تل د جنسي غریزی مړول وي او په دې توګه د هغه اخلاق له منځه یوړل شي » (۳)

---

( ۱ - ۳ ) تربیة الاولاد فی الاسلام ۲۸٤ .

## ۷ - د ښځې او نارینه د اولاد روزلو مسؤولیت :

دا د الله تعالی د ارادې او حکمت په اساس د ژوندانه د قانون او نظام تقاضا ده چې د نارینه او ښځې نکاح د دواړو له اجتماعي ژوند سربېره د محمدي امت د ډېرښت او د دواړو د نسبي سلسلې د دوام او له مړینې وروسته د هغوی د شتمنیو او نورو مفاخرو د وارث د پیدا کېدلو وسیله گرځولې شوې ده او دا چې نسبي سلسله صالحه او سمه په ښه نوم سره یاده شي نو ځکه چې په قرآن کې ( الطیّبات للطیّبین ) یعنی پاکې ښځې د پاکو نارینه وو لپاره او په نبوي حدیث کې ( فاظفر بذات الدین ) یعنی د متدینې ښځې په نکاح موفق شه نو سړی د صالحې ښځې نکاح کولو ته هڅول شوي دي او بیا چې د صالحې ښځې د نکاح کولو یادونه شوې . همدا راز د حضرت پیغمبر د ( اذا خطب الیکم من ترضون دینه وخلقه فزوّجوه الا تفعلوه تکن فی الارض فتنةٌ وفسادٌ عریض ) په ارشاد سره متدین او صالح نارینه ته د خور او لور په نکاح ورکول ګټور ښوول شوي دي .

بیا کله چې د مېړه او ښځې اولاد پیدا شي او مېړه د پلار او ښځه د مور د لقب خاونده شي نو د اسلام مقدس دین د مور او پلار دا مسؤولیت ښیي چې باید دواړه د خپل اولاد چې صالح او د ټولنې ګټور غړي وي د دیني روزنې مسؤولیت په ښه توګه ترسره کړي ، اولاد ته د دین اصولو او احکامو ښودنه وکړي او د ښه ژوند د مقتضیاتو ، لارو او عواملو سره یې اشنا کړي .

الله تعالی مؤمنانو ته د خپل اهل د تعلیمي مسؤولیت په باب داسې دستور ورکوي او وایي :

« یاایهاالذین امنوا قوا انفسکم واهلیکم ناراً »

ای مؤمنانو ! خپل ځانونه او خپل اهل له اور ( یعنی د اور له

موجباتو ) ښځه وساتئ .

ځنګه چې له مؤمن نارینه ښځه د دوزخ له اور ښځه د نیک عمل له لاري د خپل اهل ( ښځه او اولاد ) د بچولو غوښتنه شوي ده . همدا راز بیا د اولاد په نسبت د اولاد د پلار ترڅنګه د مور په حیث د ښځي دا مسؤولیت دی چې خپل اولاد ته دیني روزنه ورکړي او هغوی د الله تعالی صالح بنده ګان او د ټولني مفید او خدمتګار غړي وګرځوي .
څنګه چې په اسلامي عباداتو کي لمونځ د توحید له عقیدي وروسته د اسلام مهم رکن ، مهم عبادت او د مسلمان په دنیوي او اخروي ښیګڼو او کامیابیو تمامیږي او د الله تعالی سره د راز او نیاز ، عاجزي او خشوع ، عبادت او بنده ګی لوی شعار او د ژوند د نظام ، د اسلامی ورورولی ، اتحاد او همدردي ښه لارښود دی نو حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم میندو او پلرونو اونورو روزونکو ته په لمانځه سره د اولاد د عادي کولو داسي توصیه کوي :

« مروا اولادکم بالصلوة وهم ابناء سبع سنين واضربوهم عليها وهم ابناء عشر سنين وفرقوا بينهم فی المضاجع » (۱)

خپل اولاد ته د لمانځه د ادا کولو امر وکړئ او هغوی اوه کلن وي او په لمانځه دوی ( چې کله یې نه کوي په تادیبی توګه ) ووهی او د دوی ترمنځه د خوب ځایونه جلا کړئ ( یعنی لس کلن هلك دی د خپل خور ، مور او داسي نورو ښځو سره او همدا راز لس کلنه نجلی دی د خپل مشر ورور اونورو نارینه و سره یوځای ملاسته نه کوي ) .

همدا راز حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم هغه پلار ته ( او مور ته هم ) چي خپل اولاد ته ښه ادب وښیی هغه یې ښه ورکړه ګڼلی

---

(۱) رواه ابوداود عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده وكذا رواه فی شرح السنة وفی المصابيح عن سبيره بن معبد ، مشكوة المصابيح ۵۸ .

ده او داسې يې ويلى دي :

« ما نحل والد ولدا من نحل أفضل من أدب حسن » (١)

يعنى پلار اولاد ته له ښه ادب څخه پرته بله ښه ورکړه نه ده ورکړې

بل همدغه الهى پيغمبر دى چې د خپلو کوچنيو ګرانو لمسيانو ( حسن او حسين رضى الله عنهما ) سره ډېره مينه کوله او ښکول به يې او هم به يې پلرونو ته د کوچنى اولاد سره د شفقت کولو او د هغه د ښکلولو توصيه کوله ( بايد ميندى هم د اولاد سره شفقت وکړي او اولاد ښکل کړي ) .

له ابوهريرة رضى الله عنه څخه روايت دى وايى :

« قبل رسول الله صلى الله عليه وسلم الحسن بن على وعنده الأقرع بن حابس التميمى جالساً فقال الأقرع : « إن لى عشرة من الولد ما قبلت منهم أحداً » فنظر إليه رسول الله صلى الله عليه وسلم ثم قال : « من لاَيَرحم لايُرحم » (٢)

رسول الله صلى الله عليه وسلم حسن بن على او د هغه سره اقرع بن حابس تميمى ناست و ، اقرع وويل : بى شکه زه لس اولاده لرم ما د دوى هيڅ يو ښکل کړى نه دى نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وکتل ، بيا يې وويل : څوک چې رحم نه کوي پر هغه رحم نه کيږي .

همدا راز حضرت پيغمبر صلى الله عليه وسلم خپل پرکټى ( عمر بن ابى سلمه ) ته د خوراک د آدابو ښوونه کړى ده .

همدغه عمر بن ابى سلمه رضى الله عنهما دى چې له خپلې دغې موضوع څخه داسې يادونه کوي او وايي :

« کنت غلاماً فى حجر رسول الله صلى الله عليه وسلم وکانت يدى تطيش

(١) رواه الترمذى والبيهقى فى شعب اليمان عن ايوب بن موسى عن ابيه عن جده ، مشکوة المصابيح ٤٢٣ .

(٢) رواه البخارى فى کتاب الادب ، باب رحمة الولد .

فی الصحفة فقال لی رسول الله صلی الله علیه وسلم : « یا غلام سم الله وکل بیمینك وکل مما یلیك » (١)

ای هلکه ! د الله نوم یاد کړه ، او په خپل ښي لاس خوراك وکړه او له هغه چې تا ته نژدی ( یعنی له خپلی مخی ) دی خوراك وکړه .

بل حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم میندو ته لارښوونه کوي چې له خپل اولاد سره د رښتیا خبرې وکړی او د رښتیا وعده وکړی .

امام احمد او ابوداود له عبدالله بن عامر بن ربیعة څخه روایت کوي چې هغه ویلی دي :

« اتانا رسول الله صلی الله علیه وسلم وأنا صبی فذهبت لأخرج لألعب ، فقالت أمی : یا عبدالله تعالَ أعطك ، فقال لها رسول الله صلی الله علیه وسلم : وما أردت أن تعطیه » فقالت : تمرا . فقال : أما أنك لو لم تفعلی کتبت علیك کذبة » (٢)

مونږ ته رسول الله صلی الله علیه وسلم راغی او زه هلك وم نو ووتم چې لوبې وکړم نو مور ماته وویل : ای عبدالله ! راشه چې درکړم ، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغې ته وویل : ته څه اراده لری چې هغه ته ورکړې نو هغې وویل : خُرما ، نو هغه وویل : که تا دا نه وی کړی نو دا به پرتا دروغ لیکل شوي وی .

الله تعالی په قرآن کې د دیني روزنې موضوعات او مراتب لومړی عقیده ، بیا عبادات او بیا نیك آداب ، ښه صفات او اخلاق ښودلي دي .

همدغه د اولاد دیني روزنه ده چی حضرت لقمان لومړی خپل زوی ته د الله تعالی د توحید د عقیدی چې د ټولو ښیګڼو او کمالاتو د حصول او د ټولو عباداتو اونیکو عملونو د قبول مصدر دی درس ورکوي او له

---

(١) رواه البخاری ومسلم عن عمر بن ابی سلمة رضی الله عنهما ، مشکوة المصابیح ٣٦٣ .
(٢) فی ظلال القرآن ، ج ٦ ، ص ٣٥٥٣ .

شرك څخه ورته د منع کېدلو توصيه کوي . بيا ورته د الله تعالی د محيط او کامل علم يادونه کوي او پوهوي يې چې د الله تعالی څخه هيڅ عمل که ښه وي که بد ، ډېر وي که لږ ، پټ وي که ښکاره د حساب او جزا څخه ګوښه پاتې کېدونکی نه دی . بيا خپل زوی ته د لمانځه د قايمولو ( په ښه توګه د لمانځه د ادا کولو ) او په ښو د امر کولو او د بدو د منع کېدلو او د صبر کولو توصيه کوي .

او بيا له عقيدې او عبادت څخه وروسته خپل زوی ته د نيکو اخلاقو او آدابو په لړ کې د تواضع او عاجزۍ ، په تګ کې د اعتدال او د خبرې آداب چې په لوړ آواز سره نه وي ښوونه کوي او دغه تبليغي اصول د لقمان د سورت په ( ۱۲ - ۱۹ ) آيتونو کې ذکر شوي دي .

په دې اساس هر مسلمان مکلف اومسؤول دی چې لومړی خپل اولاد ته د اسلامي عقايدو مبادي او اصول ، بيا ورته د اسلامي عباداتو لکه : لمونځ ، روژه ، زکوة ، حج او د حلال کسب او عمل له لارې روزي پيدا کول او بيا ورته د اسلامي اخلاقو او آدابو ، لکه : صداقت ، امانت ، اخلاص ، تقوی ، عفت ، احسان ، د لويانو احترام ، په کشرانو شفقت ، په بېوزلو ترحم ، د قهر او غصې زغمل ، د امانت نه خيانتول او د خلکو سره په ښه ډول رويه کول او داسې نور .

البته د اولاد د ښه روزلو ښه طريقه دا ده چې مور او پلار او بيا په خاص ډول مور چې د اولاد لومړنی روزونکې او د هغې غېږ لومړنی مدرسه ده خپل اولاد ته له وړوکتوب څخه د رشد او کمال تر مرحلې جسماني ، فکري او علمي وده ورکړي ، لومړی يې د خپل نژدې ماحول سره آشنا کړي او بيا په تدريجي ډول چې د خپل نژدې ماحول سره اشنا کړي او بيا په تدريجي ډول چې د اوه کلنۍ مرحلې ته ورسيږي په لمونځ کولو يې عادي کړي او ورته د ښو آدابو او اخلاقو ښوونه وشي او بيا د

زده کړو په ابتدایي مرحله کې د استاذانو په وسیله د هغو فکري ، علمي او عملي ودی ته ډیره پاملرنه وکړي . او بیا چې د زده کړو له ابتدایي مرحلی څخه وروسته د علمي نورو لوړو زده کړو په ساحه کې قدم کیښیږدي او فکري او علمي قوه یې له پخوا څخه ښه وده کړي وي نو بیا ورته د اسلام د دین او دولت ، قرآن د تشریع او قانون ، اسلامي تاریخ د عزت او افتخار ، اسلامي ثقافت د روح او فکر د خوځولو او اسلامي دعوت د فرد او ټولني د اصلاح د بوازني عامل په توګه وروښیی او هغوی ته د خپل دین ، خپل هیواد ، خپلی ټولنې ، خپلواکی او حاکمیت د خوندي ساتلو د مسؤولیت ښوونه وکړي او د دښمنانو د استعماري هلوځلو په مقابل کې لکه له کینی ډك صهیونیت ، مکار صلیبیت ، ملحده کمونستی او داسي نور باطل او فاسد فکري مکتبونه او فلسفی هغوی ته د بیداری خبری وکړي او هغوی د وخت د ایجاباتو او ضروریاتو په اساس د دفاعي وسایلو سره اشنا کړي او هم په دې وپوهول شي چې قوي ایمان ، د ایثار عالی روحیه ، تقوی او اخلاص د بري ستر عوامل دي او بیا دغه ټول د پاك قرآن اونبوي سُنت په مدرسه کې په برخه کیدلای شي .

همدا راز د مور او پلار دا مسؤولیت دی چې خپلو لوڼو ته د دین ضروري احکام اومسایل ، د کور تدبیري چاری او انتظام ، د میړه حقوق اود اولاد د روزلو مسؤولیت وروښیی .

دا امامه تغلبی د عوف الشیباني شریفه او پوهه ښځُه ده چی کوم وخت لور یی ( أم ایاس بنت عوف ) خپل میړه ( عمر بن حجر الکندی ) ته ودبیږي نو مخکی له تللو څخه ورته د ښه ژوند اونیکی ګوزاری داسی توصیه کوي او وایی :

ای لوری ! که چیرته ښځُه له میړه څخه د خپل پلار د مال او دولت په

سبب بی پروا کیدلای شوای نو په دغه باب به زه لوم‌ړنی ښځهُ وای مگر مونږ د سړیو لپاره پیدا شوي یو او سړي زمونږ لپاره پیدا شوي دي .

ای لوری ! ته د هغه کور چې په کې پیدا او لویه شوی یی پریښودونکی یې او هغه کور ته چې ته ورسره اشنا نه یې او هغه د ژوند ملگري ته چې ته یې نه پیژني ورتلونکی یې نو ته د هغه وینځه شه نو هغه به ستا مریی شي او ته له ما څخه لس خصلتونه زده کړه څو ستا لپاره ښه پند او ښه ذخیره وي .

لوم‌ړی او دویم دا دی : ته له قناعت او سی گوزاری څخه کار واخله ځکه په قناعت کې د زړه راحت او په ښی گوزاری کې د رب رضا شته .

دریم او څلورم دا دی : ته د هغه د سترگو او پزې څارنه او تعهد کوه څو ستا بدی ته د هغه د سترگو نظر ونشي او د هغه پزه بی له ښه بوي څخه بد بوي حس نه کړي .

پنځم او شپږم دا دی : ته د هغه د خوراك او د هغه د خوب د وختونو مراعات وکړه ځکه د لوری تاو اور بلوونکی دی او بیخوبی د قهر راوستونکی دی .

اوم او اتم دا دی : د هغه د کور او مال او د هغه د ابرو او عیال ساتل دی ځکه د مال ساتل اصلی تقدیر او د ابرو عیال ساتل ښه تدبیر دی .

نهم او لسم دا دی : ته د هغه راز مه ښکاره کوه او د هغه له امر څخه مخالفت مه کوه ځکه د راز په ښکاره کولو له هغه څخه غدر وینی او د امر په مخالفت کې د هغه کینه پیدا کیږي .

بل دا چې که هغه خفه و ، نو خوشحالی به نه کوی او که خوشحاله و ، نو خفگان به نه کوی ، او ترڅو چې ته د هغه احترام کوی هغه به ستا عزت کوي او څومره چې ته د هغه سره توافق او جوړښت ښیی هغه به تا سره خپله ملگرتیا ښیی او ته وپوهیږه چې ته په دې نه توانیږې ،

څو د هغه خوښه پرخپلې خوښې وړاندې نه کړي او د هغه هوس ته پرخپل هوس باندې ترجيح ورنه کړي . الله دې تاته خير په نصيب کړي او په الله دې سپارم .

دا و د يو عربي هوښيارې ښځې ګټور نصايح چې خپلې لور ته يې د واده په وخت کې کړي وو . همدا راز ښايي هره ښځه خپلې لور ته د واده په وخت کې دغه راز ګټور نصايح وکړي څو ژوند يې آرام او تل خوشحاله وي .

# تر څلورو د نکاحي ښځو د تعدد حکمت او فلسفه

د اسلام له ظهور او راتګ څخه مخکې او ترهغه چې د نکاحي ښځو د تعدد په باب د الله تعالی حکم نازلیده په نړۍ کې به هرچا د خپلې خوښې له مخې له یوې زیاتې ښځې په نکاح کولې او د نکاحي ښځو حد او اندزه معلومه نه وه .

(۱) دا په عربو کې غیلان بن سلمة و چې دغه نوموړي لس ښځې درلودلې ، کله چې ده اسلام راووړ نو الهي پیغمبر ورته وویل : چې له دغو ښځو څخه څلور ښځې ځان ته پریږده او نورو ته طلاق ورکړه .

بل کله چې وهب اسدی مسلمان شو نو په دغه وخت کې د ده په نکاح کې اته ښځې وې ، نو ده ته هم وویل شو چې له اتو ښځو څخه څلور ښځې ځان ته پریږده او نورې طلاقې کړه . (۲)

---

(۱ ۲) سیرة النبی صلی الله علیه وسلم ، ج ٤ ، ص ۲۲۳ .

دا چې محمدي امت تارينه وو ته تر څلورو ښځو نكاح كول څنګه روا شوي او حكمت يې څه دی دا دې په دغه باب داسې يادونه كيږي :
په صحيحو احاديثو كې راغلي دي : هغه يتيمې ګجونې چې د خپلو اولياوو تر تربيت لاندې به وې او د هغې يتيمې او د هغې د ولي په مال او ځمكه او باغ كې به د خپلوۍ له امله شركت و : نو دلته به دوه صورته وړاندې كيده :
١ - كله به داسې پيښيده چې ( ولي ) ته به د هغې جمال او مال دواړه مرغوب و او د هغې ولي به لږ څه مهر په بدل كې له هغې سره خپله نكاح تړله ځكه هغې به بل څوك نه درلود چې د هغې د حق غوښتنه يې كړې وې .
٢ - كله به داسې كيده چې د دغې يتيمې ګجلې جمال به مرغوب نه و ، مګر ولي به د دې خيال له امله كه زه د دې نكاح له بل چا سره وتړم نو د دغې ګجلې مال به زما له لاسه ووځي او زما په مال كې به بل څوك راسره شريك شي نو د دې مصلحت له مخې به يې په بوه ډول د هغې سره نكاح تړله ، خو له دې منكوحې سره به يې په زړه كې څه مينه او رغبت نه درلود نو د « وإن خفتم الا تقسطوا فى اليتمى فانكحوا ماطاب لكم من النساء مثنى وثلث وربع فإن خفتم الا تعدلوا فواحدة أو ما ملكت ايمانكم ذلك ادنى الا تعولوا » آيت نازل شو اواولياوو ته ارشاد وشو :
« كه تاسې له دې خبرې څنې وېرېږئ چې د يتيمو ګجونو په نسبت انصاف نشئ كولاى او د دوی په مهر او حسن معاشرت كې له تاسي څني څه تقصير پيښيږي . نو تاسي له هغوی سره نكاح مه تړئ ، بلكې له نورو مرغوبه وو ښځو څنې له يوې ښځې نيولې تر څلورو پورې تاسې ته اجازه شته چې د شريعت له قاعدې سره يې سم نكاح كړئ چې له دې جهته يتيمو ګجونو ته څه نقصان ونه رسيږي ، ځكه تاسې چې د هغوی د

حقوقو حامی يې نو نه ښايي چې د حمايت له امله په کومې خرابۍ او گناه کې ولوېږي » .

دا چې په اسلام کې د محمدي امت يو نارينه ته له يوې ښځې تر څلورو ښځو نکاح کول روا شوي دي دا د خاصو شرايطو او حالاتو په حدود کې د عدالت د اصل د مراعات کولو په اساس بنودل شوی دی ، بلکې همدغه د اسلام د ترحم او عدالت روحيه او غوښتنه ده چې دغه آسماني دين د ښځو د تعدد په صورت او حالت کې لا څه چې د يوې ښځې د نکاح په باب د نارينه د نفساني غريزې او مالي توان د څرنگوالی په اساس خاص احکام لري او نکاح ته د نفساني شوق او مالي توان له مخې د وجوب ، سُنتيت ، اباحت ، کراهت او حُرمت په خاص خاص اعتباراتو قايل دی او هغه داسې :

که د ښځې نکاح ته د نارينه شهواني قوه زياته په تحريك کې وه او له هغه سره د زنا وېره موجوده وه او د مالي توان خاوند هم و نو په دغه حالت کې نکاح کول واجب او لازمي ده . او که د نارينه شهواني تمايل لږ او مالي توان يې موجود و نو په دغه حالت کې نکاح کول سُنت دی ، او که د نارينه شهواني ميلان موجود نه و او مالي توان يې هم نه درلود ، نو بيا په دغه صورت کې د هغه نکاح کول مندوب ( مستحب ) دی ، او که بيا د شهواني ميلان او مالي توان خاوند نه و ، نو په دغه حالت کې نکاح کول مکروه دي ، او که په دې يې باور و چې د نکاح په صورت کې د زوجيت حقوق نشي ادا کولی او په ښځې باندې ظلم کوي نو بيا په دغه حالت کې نکاح کول حرام دي .

نو هغه څوك چې له يوې ښځې څخه زياتې ښځې ، لکه : دوې يا درې او يا څلور نکاح کوي او بيا هغه د خپلو ښځو په منځ کې د نفقې، جامې ، مسکن او شپې تېرولو له حيثه عدالت نه کوي نو هغه به د

قیامت په ورځ په یوه اړخ مایل ( کوږ ) را پورته شي او د خپلې بې عدالتی اونارروا له بد عاقبت سره به مخامخ شي .

دا چې اسلام له یوې ښځې څخه تر څلورو ښځو د نکاح اجازه ورکړې ده هغه د دغه آسماني دین له نظره د ضرورت اومصلحت له مخې دی او هغه په دې ډول دی :

۱ - څنگه چې معلومه ده په جنگونو کې نارینه ډیر مري او ښځې د جنگ له خطر څخه خوندي وي نو په دغه صورت کې د ښځو شمیر زیات او نارینه لږ وي نو که چیری سرپیره پر یوی ښځې د بلې ښځې نکاح کول روا نشي نو زیاتی ښځې به بې میړه او بی سرپرسته پاتی شي او زنا او فحشاء ته به مجبوری شي نو بیا سربیره پر دې چې د دوی د انساني کرامت او عفت بی حرمتی وشي نو په ټولنه کې به په نامشروعه توگه د مجهول النسب ماشومانو زیږندی وشي او بیا به هیڅوک د دغو ماشومانو روزلو ته زړه ښه نه کړي او دغه ماشومان به بی روزنی ، شړل او ځنگلي لوي شي او د دوی په اخلاقي فساد او د لاقیدی په حرکاتو او عملونو سره به ټولنه ناآرامه اوتل به په ویره اوتشویش کی وي .

۲ - که یو نارینه یوه ښځه په نکاح کړي او بیا هغه ښځه عقیمه ( شنډه ) معلومه شي او طبي علاج یې نه کیږي اومیړه یې د اولاد په هیله وي او غواړي چې موروثی مفاخر او شتمنی یې اولاد ته انتقال وکړي نو دغه راز نارینه ور ته دا حق شته چې یوه بله ښځه په نکاح کړي او ورڅخه د اولاد د پیدا کیدلو هیله ولري .

۳ - که یو نارینه یوه ښځه په نکاح کړي او بیا دغه ښځه په یوی داسې ناروغی اخته شي چې علاج یې سخت وي او د کور له اداری او انتظام او د میړه د حقوقو له ادا کولو څخه عاجزه شي نو میړه یې کولای

شي چې يوه بله ښځه په نکاح کړي او له هغې سره خپل مشکل ترسره کړي .

٤ - که يو نارينه يوه ښځه ولري او په يوې ښځې باندې د هغه د شهواني قوې تسکين نه کيږي او د هغه مالي توان هم موجود وي نو هغه کولای شي چې يوه بله ښځه هم په نکاح کړي .

البته د نکاحي ښځو د تعدد په حالت کې پر ميړه باندې لازم دي چې د خپلو ښځو ترمنځه عدالت وکړي او د هرې يوې د حقوقو پوره مراعات وکړي او د ظلم او ناروا خخه ډډه وکړي .

نو همدغه د اسلام اسماني دين دی چې تل د ښځو د حقوقو او د هغوی د انساني کرامت د احترام او د هغوی د ژوند د تامينولو توصيه کوي او هغه څوك چې د ښځو د تعدد په صورت کې د ښځو ترمنځه د نفقې ، جامې ، مسکن او د شپې تيرولو د نوبت له امله عدالت نه کوي او يوې ته پر بلې ترجيح ورکوي هغه يې د بد حالت او لوی مسؤليت خاوند ګڼلی دی .

الله تعالی ويلی دي :

« ولن تستطيعوا ان تعدلوا بين النساء ولو حرصتم فلا تميلوا كل الميل فتذروها كالمعلقة » (١)

او له سره به تاسې ونه کړای شئ ( ای د ډيرو ښځو ميړونو ) چې تاسې د ښځو ترمنځه (په هر شي کې) عدل وکړئ اگر که تاسې عدل ته ډير حرص وکړئ نوتاسې ( له يوې ښځې څخه ) په کامل مخ ګرځولو سره مخ مه ګرځوئ چې هغه د ځوړندې په شان پريږدئ ( نه يې طلاقوی او نه يې د حق مراعات کوئ ) .

يعنی که تاسې ډيرې ښځې په نکاح کې لرئ او دا ستاسې د لاسه نه کيږي چې د زړه مينه او په هر شي کې بيخي د مساوات او عدالت

(١) النساء - ١٢٩ .

رعایت، له هري يوې سره وکړي نو بيا داسې ظلم او ناروا هم مه کوئ چې يوې ته بيخي ميلان وکړي او بله هماغسې په منځ کې ځوړنده پرېږدي ، نه يې هوسا او خوشحاله وساتئ او نه يې بيخي جلا کوئ چې د بل چا سره نکاح وکړي .

بايد وويل شي چې د ډيرو ښځو ترمنځه عدالت په نفقه ، جامه ، مسکن او د شپې تيرولو له حيثه لازم دی اود زړه مينه ورځخه مستثنی ده .

« عن عائشة أن ألنبي صلى الله عليه وسلم كان يَقْسِمُ بين نسائه فيعدل ويقول : اللهم هذا قسمي فيما أملك فلا تلمني فيما تملك ولا أملك » (۱)

له عايشې رضی الله عنها څخه روايت دی چې بيشکه نبی صلی الله عليه وسلم به د خپلو ښځو ترمنځه د بيتوتت ( د شپې تيرولو ) نوبت کاوه نو عدالت به يې کاوه او ويل به يې : ای الله ! دا زما قسم ( د شپې تيرولو نوبت ) دی په هغه څه کې چې زه يې مالك يم نو ته ما مه ملامتوه په هغه څه کې چه ته يې مالك يې او زه يې مالك نه يم ( !. هغه د زړه ميلان او محبت دی ) . هو ، هغه څوك چې ډيرې ښځې لري او هغه د خپلو ښځو په منځ کې د حقوقو له حيثه عدالت نه کوي نو هغه به د بد عاقبت خاوند وي .

ابوهريرة رضی الله عنه له نبی صلی الله عليه وسلم څخه داسې روايت کوي چې :

« إذا كانت عند الرجل امرأتان فلم يعدل بينهما جاء يوم القيامة وشقه ساقط » (۲)

کله چې د يو سړي په نزد دوې ښځې وي نو هغه د دواړو ترمنځه عدالت ونه کړ نو د قيامت په ورځ به راشي او حال دا چې د هغه نيم بدن به ساقط ( او مايل او کوږ ) وي .

---

(۱) رواه الترمذی وابوداود والنسائی وابن ماجة والدارمی ، مشكوة المصابيح ۲۷۹ .

(۲) رواه الترمذی وابو داود والنسائی وابن ماجة والدارمی ، مشكوة المصابيح ۲۷۹ .

دا و د څلورو نکاحي ښځو په باب د اسلام د عدالت ، ترحم او مصلحت دريځ چې په پورته ډول يې يادونه وشوه نو دا چې د اسلام دښمنان د ښځو د تعدد په باب د دغه آسماني دين روښانه څيره په بله ښيي او هغه د ظلم او قساوت دين ګڼي نو دوی دي د واقعيت او انصاف له مخې قضاوت وکړي چې آيا د نکاحي ښځو د تعدد په باب د اسلام دريځ معقول او د ښځو په خير او مصلحت دی او که د دوی قانون چې نارينه يوازې او يوازې د يوې ښځې د نکاح کولو جواز ورکوي ؟

آيا دا ښه کار دی چې د اسلام آسماني دين د ضرورت او مصلحت له مخې يوه نارينه ته تر څلورو ښځو د نکاح د مشروعيت حکم کوي او بيا د همدغو ښځو ميړه د دوی ناموس او ژوند خوندي کوي او د نورو خلکو ښځو ته په درنښت نظر کوي اود هغوی انساني کرامت او عفت د احترام وړ ګڼي يا دا چې دوی چې د يوې ښځې د نکاح د جواز حکم کوي او بيا پر خپلې ښځې اکتفا نه کوي . او د نورو ښځو پر عفت تيری کوي او په ټولنه کې د خپلې عياشی په سبب د فساد ، ظلم او ناروا سبب ګرځي .

آيا د دوی د ناروا معشوقو تعدد د ښځو تعدد نه دی ؟

آيا د پرديو ښځو سره د دوی ناروا ارتباط د دغو ښځو او ميړونو په منځ کې د بی اعتمادي او د دوی د کورني ښسټ او ژوند د خرابی سبب نه کيږي ؟

آيا د دوی د ناروا جنسي غريزي ارتباط د نامشروعو زيږندو چې څوك د هغو روزنی ته زړه نه ښه کوي سبب نه کيږي او د بی سرپرستی په سبب د دغو زيږندو بچيان د ټولنی شرير او فاسد عناصر نه ګرځي ؟

## په اسلام کې د ښځو د تعدد په باب
## د انصاف د خاوندانو ویناوې :

انی بیزانت Ani Bezant نړۍ والی زعیمی ویلی دي :

« کله چې مونږ د عدالت په تله چاری وسنجولی نو څرګنده شوه چې د مسلمانانو ښځو تعدد چې د دوی ساتنه کیږي او نفقه او جامی ورکول کیږي د دوی مصؤونیت خورا زیات موزون او ښه دی فحشاګری ځکه چې له ښځی ځکه یوازی د شهواني غریزی لپاره کار اخیستل کیږي او بیا د حاجت د پوره کیدلو وروسته په سړک او لاره کې غورځوله کیږي » (۱)

نوموړی زیاتوی او وایی :

« ښځه د اسلام په سیوري کې ډیره آزادي لري ، اسلام د نورو ادیانو په نسبت په زیاته اندازه د ښځی د حقوقو ساتنه کوي . د ښځی په باب د اسلام تعلیمات په ډیر عدالت سره دي او ښځی په انګلستان کې له شلو کلونو راهیسی د ملکیت حق ترلاسه کړی او اسلام د ښځی د ملکیت حق په لومړی شیبی اعلان کړی دی او دا دروغ دي چې ښځه د اسلام په نظر کې یو محروم روح دی » (۲)

بل یو انګلیسي لیکوالی د لندن ( تریبیون ) په مجله کې په خپل چاپ شوي مضمون کې ویلي دي :

« زمونږ د سرکښو لوڼو شمیر زیات شوی دی او ټول هیواد یې نیولی دی او زه د یوې ښځی په توګه هغوی ته نظر کوم او زما له زړه ځکه پرهغوی باندی د حسرت او شفقت تأثرات او ولولی څرګندیږي . وینم چې د هغوی شافی دوا دا ده چې سړي ته اجازه وشي چې له یوې ښځی ځکه زیاتی ښځی په نکاح کړي او په دې توګه زمونږ لوڼی د کورونو بادارانی شي او

---

(۱ - ۲ ) توجیهات اسلامیة لاصلاح الفرد والمجتمع ۱۲٤ - ۱۲۵ .

شک نشته چې پر یوې ښځې باندې د سړي مجبورول زمونږ د لوړو د یاغیتوب او سرکښۍ سبب گرځیدلی دی او دوی یې د نارینه وو کارونو ته مجبور کړي دي او ژر دی که د ښځو تعدد جواز پیدا نه کړي نو د شر او فساد لمنه به پراخه شي » (۱)

همدا راز سلدن په خپل تالیف ( اوگزود هبریکا ) کې دا ثابتوي چې د ښځو تعدد نه یوازې د یهودیانو په منځ کې و ، بلکې په ټولو ملتونو او اولسونو کې مباح او روا و .

نو په دې اساس محمد صلی الله علیه وسلم روا وگڼله چې نه یوازې دا محترم دی ، بلکې په پخوانیو دورو کې د الله له طرفه د برکت او رحمت وړ گرځول شوی نو باید له دی خخه چې هغه د ښځو تعدد مشروع کړي او په نتیجه کې بې شهوت پرستي رواج کړي مصؤون او غیرمسؤول وگڼل شي او هغو کسانو چې د ښځو « اوسنی وضعی او حالت ته‌ېتوالی د ښځو تعدد گڼلی د هغو دغه تومت او تور باطل او بې اساسه دی » .

---

(۱) رفقاء القواریر ۳٦ .

# د حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم
# د ښځو د تعدد حکمت

دا چې الله تعالی حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته د هغه د امت د نارینه وو په نسبت د زیاتو ښځو نکاح کول ( څنګه چې په یوه وخت کې ښځې یې ( ۹ ) وې ) روا کړې وې نو د دغه الهی ذات هرکار د مصلحت او حکمت په اساس دی نو د دغه الهی پیغمبر د ښځو د تعدد له حکمتونو څخه ځینی دا دي :

## ۱ - تعلیمي حکمت :

څنګه چې په ټولنه کې د ښځو طبقه په تقریبي ډول د نارینه وو په نسبت نیمه او بیا دوی د نارینه وو په شان د دین د مسایلو او احکامو د

زده کړی په باب مسؤولی دي نو دوی په ځینو مسایلو کې ، لکه : حیض ، نفاس ، جنابت او داسې نورو کې د شرم او حیا لرونکی دي نو له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه یې ښکاره او ډاډه پوښتنی نه شوای کولای نوالله تعالی خپل پیغمبر ته د ډیرو ښځو نکاح روا کړله څو د مسلمانانو ښځی په آسانی او ډاډه زړه د دغه الهي پیغمبر له ښځو څخه د شرعی حکم په باب پوښتنه وکړي او خپل مشکل او اشتباه له منځه یوسي او په ښه توګه د دین په مسایلو او احکامو ځانونه وپوهوی .

له عایشی رضی الله تعالی عنها څخه روایت دی وایي : « إن امرأة من الانصار سألت النبی صلی الله علیه وسلم عن غُسلها من المحیض فأمرها کیف تغتسل ثم قال خُذي فرصة من مسل فتطهری بها قالت کیف أتطهر بها فقال تطهری بها قالت کیف أتطهر بها قال سبحان الله تطهری بها فاجتذبتُها إلیَّ فقلت تبتغی بها اثر الدم » (۱)

بیشکه د انصارو یوې ښځی د نبی صلی الله علیه وسلم څخه له حیضه د خپل غُسل د څرنګوالي.په باب پوښتنه وکړه نو ورته یې امر وکړ چې څرنګه غُسل وکړي ، نو ورته یې وویل : یوه ټوټه چې له مشکو خوشبویه شوی واخله په هغې سره پاکه شه ، هغې وویل : څرنګه پاکه شمه ؟ الهی پیغمبر وویل : سبحان الله ! په هغې سره پاکه شه ، نو ما هغه ځان ته رانژدی کړه نو ومی ویل : په هغې سره د وینی اثر لری کړه یعنی ټوټه د وینی په ځای کښیږده څو وینه په هغې سره پاکه شي .

همدا راز له أم سلمة رضی الله عنها څخه روایت دی وایی :

« إن امرأة کانت تهاق الدمٌ علی عهد رسول الله صلی الله علیه وسلم فاستفتتْ لها أم سلمةُ النبیَّ صلی الله علیه وسلم فقال لتنظر عدد اللیالی

---

(۱) رواه البخاری عن عائشة رضی الله عنها ، مشکوة المصابیح ٤٨ .

والأيام التى كانت تحيضهن من الشهر قبل أن يصيبها الذى أصابها فلتترك الصلوة قدر ذلك من الشهر فاذا خلفت ذلك فلتغتسل ثم لتستثفر بثوب ثم لتصل » (۱)

بې شکه يوې ښځې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په زمانه کې وينه تويوله (۲) أم سلمة د هغې لپاره له نبی صلى الله عليه وسلم پوښتنه وکړه نو هغه ووېل : خامخا هغه دی د مياشتی د هغو شپو او ورځو په باب فکر وکړي چې په کې حـايضه کېدله ، مخکې له دې چې ورته ورسيږي هغه څه چې وررسيدلي دي . نو د مياشتی د هماغو ( شپو او ورځو ) په اندازه دې لمونځ پرېږدي ، پس کله چې هماغه اندازه ( د شپو او ورځو ) تيره شوه نو غُسل دی وکړي او جامه دی ونيسي (۳) بيا دې لمونځ وکړي .

لنډه دا چې همدغه د حضرت پيغمبر صلى الله عليه وسلم مبارکی ښځې أمهات المؤمنين دي چې خلکو ته يې د حضرت پيغمبر عليه الصلوة والسلام د اقوالو او افعالو په باب معلومات ورکول او د هغو په رڼا کې يې د تشريعی هداياتو او احکامو ښوونه کوله ، همدا راز له دغو بيبيانو څخه په خاصه توگه د مسلمانانو ښځو په ښه ډاډ او آزادی د ښځو په متعلق د ديني احکامو او مسايلو پوښتنی کولی او له خپلو چارو او مسؤوليتونو څخه يې ځانونه خبرول .

## ۲ - تشريعي حکمات :

د حضرت پيغمبر صلى الله عليه وسلم د ښځو په تعدد سره د جاهليت يو خورا بد عادت او رسم او رواج له منځه لاړ او باطل خپل ځای

(۱) رواه مالك وابو داود والدارمي وروى النسائى معناه ، مشكوة ۵۷ .
(۲) هغه مشتحاضه وه ورځخه وينه تلله .
(۳) يعنى د خپلو ورنو ترمنځ دی پرځپل عورت باندی جامه ونيسی .

حق ته پرېښبود .

د مثال په توګه :

په عربو کې پردي زوی ته زوی ویل او هغه د خپل زوی په شان ګڼل او ورته د زوی په شان حق ورکول رواج درلود او دغه کار په تبنّی ( زوی نیول ) او زوی په متبنّی سره یادیده او بیا د متبنّی زوی د ښځی نکاح کول ناروا ګڼل کیدل .

څنګه چې حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم زید بن حارثه په زوی توب ( متبنّی ) نیولی و نو دغه زید ته بی بی زنیب چې د الهی پیغمبر د عمی ( امیمه ) لور وه په نکاح شوی وه ، مګر د دواړو ( زید او زینب ) ترمنځه ګوزاره مشکله شوی وه ځکه زید د دغی میرمنی په نظر کې خوار او حقیر ښکاره کیده او له هغه سره د دغی میرمنی مزاج نه لګیده او تل به د دغو دواړو ترمنځه اختلاف موجود و او جګړه به نښتی وه ، نو زید به د حضرت پیغمبر په حضور کې حاضریده او د خپلی میرمنی په باب به یې ورته خپل شکایت وړاندی کاوه او ویل به یې :

« زه خپله ښځه خوشی کوم ځکه زما ګوزاره ورسره نه کیږي او شپی می ورسره نه تیریږي خو رسول الله صلی الله علیه وسلم به منع کاوه او ورته به یې د صبر توصیه کوله او ویل به یې :

« هغی زما له خاطره او د الله او د رسول په حکم د خپل منشأ او خوښی په خلاف له تا سره خپله نکاح وتړله نو که ته یې اوس خوشی کړی نو دغه طلاق به هم هغی او هم د هغی نورو عزیزانو او خپلوانو ته د ډېر ذلت او سپکوالی په منزله وي نوځکه له الله څخه ووېرېږه او په وړوکو وړوکو خبرو دغسي خبرې ته اقدام مه کوه او ښه دی وس وي ګوزاره کوه او په ښه شان شپی او ورځی دی ورسره تیروه » .

کله چې د دې دواړو په منځ کې موافقت رانغی او تل به د دوی په منځ کې جنګ او جګړې نښتې وې او په شپه او ورځ کی به د دوی د مناقشی مرافعی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته رسیدی او ممکن چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په زړه کې به دغی خطور کړی وي که زید لاعلاجه شي او له مجبوریته خپله ښځه خوشی کړي نو د بی بی زینبی تسل او اطمینان به له دی نه په بل شي نه کیږي ځو چی زه خپله نکاح ورسره ونه تړم . لیکن د جاهلانو او منافقانو له بد ویلو څخه په اندیښنه کې و چې دوی داسې وای :

« محمد د خپل زوی ښځه په نکاح واخیستله » حال دا چې دغه خبره دوی ته لا له پخوا معلومه وه چې د الله تعالی په نزد متبنّی په هیڅ یوه خبره کې د زوی حکم نه لري .

له بلی خوا د الله تعالی اراده په دې تللی وه چې دغه د جهالت خیال او مفکوره هم د خپل رسول په وسیله په عملي توګه لری او ورکه کړی څو مسلمانانو ته په مستقبل کې له داسې هیڅ تکلف او زحمت وړپیښ نشي او د هیڅ توحش او استنکاف ( امتناع ) مورد پاتی نه وي نوالله تعالی خپل رسول ته اطلاع ورکړه چې : ( زه بی بی زینب ستا په نکاح درکوونکی یوم ) او د ( لکیلا یکون علی المؤمنین حرجٌ فی ازواج ادعیائهم ) یعنی د دې لپاره چې پر مؤمنانو باندې د خپلو ادعیاوو ( زوی ګڼل شویو ) په ښځو کې سختی ( او وبال ) نه وي .

هماغه و چې بلاخره زید بی بی زینبی ته طلاق ورکړ او بیا چې عدت یې تیر شو الله تعالی د بی بی زینبی نکاح د حضرت پیغمبر سره وتړله او په دې سره یې د متبنّیانو د ښځو د نکاح کولو حُرمت له منځه ویوړ او خپل تشریعی حکم یې نافذ او عملي کړ .

## ۳ - سیاسي حکمت :

دا د واقعیت خبره ده چې حضرت ابوبکر او حضرت عمر په عربو کې لوی شخصیتونه او د ډیر شهرت او د ښه اعتماد خاوندان وو او بیا کله چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په الهی رسالت سره مبعوث شو او لرمړی حضرت ابوبکر او بیا وروسته حضرت عمر اسلام ومانه نو الهی پیغمبر په دواړو کې د اسلام د قوت او خدمت ښه استعداد لیده نو هماغه و چې دغه الهی پیغمبر سربیره پر دې چې دغه دواړه د اسلام په منلو سره د ده په نزد د ښه قُرب او اعتماد خاوندان وو ، له دواړو سره یې د خپلوی رابطه قایمه کړه او هغه دا چې د حضرت ابوبکر لور ( حضرت عائشة ) او د حضرت عمر لور ( حفصه ) د دغه الهی پیغمبر نکاحی ښځی وګرځیدلی او په دې خپلوی سره دواړه لازیات د الهی پیغمبر په نزد د قُرب او اعتماد خاوندان وګرځیدل .

د دغه الهی پیغمبر په نزد د دواړو د قُرب او د اسلام په باب د هغو د خدمت قوي اعتماد دی چې کوم وخت الهی پیغمبر وفات شو نو د ده په وفات سره په جزیرة العرب کې د اسلامی دین ځخه په ګرځیدلو او د اسلامی ارکانو لکه ( لمونځ ، زکات ) په پریښودلو د اسلام د موجودیت په مرکز ( جزیرة العرب ) کې د تزلزل او تشویش فضا منځ ته شوه نو بیا همدغه د اسلام لومړي خلیفه حضرت ابوبکر رضی الله عنه دی چې په قوي ایمان او ښی میړانی د اسلام د کلا شیرازه یې د نړیدو او لویدو ځخه وژغورله او بیا یې په ټول جزیرة العرب کې اسلام غالب او حاکم وګرځاوه .

همدا راز د اسلام دویم خلیفه عمر بن الخطاب رضی الله عنه دی چې د ده د خلافت په دوره کې اسلام هر لوری ته خپور شو او مسلمانان د ښه

شان او اقتدار خاوندان وګرځیدل .

همدغه د نکاح سیاسي حکمت دی چې کوم وخت یو نارینه له یوې کورنۍ څخه ښځه په نکاح کړي نو د ښځې د کورنۍ غړي ، خپلوان او قومیان د هغې د میړه ملاتړ ګرځي او د سختی او تکلیف ، ضرورت او حاجت په وخت څو چې ممکن وي ورسره لازمه مرسته او ښیګڼه کوي .

نو دا چې حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم د عربی قبایلو د لویو او مشهورو کورنیو څخه متعددی ښځې په نکاح کړی د هغوی په نکاح کولو سیاسي غرض دا و چې د هغوی خپلوان او قومیان د ده په خپلوی سره خوښي او ویاړنه وکړي . اسلام منلو ته زړونه ښه کړي او د اسلام په منلو د حق پیروان او ملاتړ وګرځي .

دا أم المؤمنين جویره رضی الله تعای عنها ده چې بنومصطلق د قبیلې د یوه مشهور مشر ( حارث ) لور وه ، دغه بی بی د خپل قوم سره د مسلمانانو په لاس کې بندي او د ثابت بن قیس په سهم کې وه ، غوښتل یې چې د مال په بدله کې له بنده خلاصه شي هماغه و چې حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته راغله او ورته یې وویل چې ثابت د ( ۹ ) اوقیه و زرو په مقابل کې مکاتبه کړی یمه نو الهی پیغمبر دغه بی بی له مکاتبت څخه خلاصه کړه او خپل ځان ته یې په نکاح کړله . بیا هماغه شول چې مسلمانانو په دې چې بنومصطلق د حضرت پیغمبر خُسرګنی شول نو د هغو ټول بندیان خوشی کړل او بیا چې بنومصطلق د مسلمانانو نیکه رویه او ښه پیرزوینه ولیدله نو ټولو په خوښی اسلام ومانه او له باطل دین څخه وګرځیدل .

دا أم حبیبه رمله د ابوسُفیان لور ده چې د مکی د مشرکانو د ظلم او ناروا له لاسه یې د خپل میړه سره حبشی ته هجرت کړی او بیا چې میړه یې په حبشه کې ومړ نو حضرت پیغمبر د حبشی پاچا نجاشي ته

خبر واستوه څو أم حبيبه ورته په نکاح کړي ، هماغه و نجاشي د حضرت پيغمبر صلی الله عليه وسلم هيله او غوښتنه سرته ورسوله او له هغه سره يې د أم حبيبه نکاح وتړله او أم حبيبه ته يې څلور سوه ديناره د مهر په توګه ورکړل .

شك نشته چې ابوسُفيان په دغه خپلوی خوشحاله شو او ورباندی يې ډيره وياړنه کوله او بيا هماغه شو چې د هجرت په اتم کال د مکی د فتحی په وخت اسلام يې ومانه او الهی پيغمبر هغه ته خاص امتياز ورکړ او د هغه کور يې د امن ځای وګرځاوه ( څوك چې د هغه کور ته داخل شي هغه به نه وژل کيږي ) .

٤ - بل حضرت پيغمبر صلی الله عليه وسلم ته د څلورو ښځو څخه د زياتو ښځو روا کيدل د الله تعالی په نزد د هغه د افضليت او قُرب د مقام ( چې غوره د خلکو او د ټول عالم لپاره رحمت او د ډير قوت خاوند و ) له مقتضياتو او د الله تعالی د لوی فضل او احسان مظهر دی .

الله تعالی پرهغه باندې د خپل لوی فضل او ډيری مهربانی داسې يادونه کوي :

« وکان فضل الله عليك عظيماً » النساء ١١٣

او دی پر تا باندی د الله لوی فضل .

« وما ارسلناك الأ رحمة للعالمين » الانبياء ١٠٧

او مونږ ته نه يې ليږلی مګر د عالميانو لپاره رحمت .

« ولسوف يُعطيكَ ربّك فترضی » الضحی ٥

او خامخا ژر دی چې تاته درکړي ( په آخرت کې لويه برخه د شفاعت مقام ) پس راضی به شی .

کله چې الله تعالی په خپل فضل او مهربانی حضرت پيغمبر صلی

الله علیه وسلم د نورو ټولو په نسبت د ډیر انعام او اکرام خاوند ګرځولی او هغه ته یې د خلورو څخه زیات د ډیروښځو نکاح روا کړی او بیا چې د دغه الهی ذات ټول کارونه د هغه د محیط علم او لوی حکمت په اساس سره دی نو ښایی چې په دغه باب هیڅوک بیځایه خبره ونه کړي او د الله تعالی پر مقدراتو او کارونو انتقاد ونه کړي .

الله تعالی د خپل رحمت او انعام د کولو په باب ویلی دي :

« یختصُ برحمته من یّشاء والله ذوالفضل العظیم » ال عمران ۲۷٤ .

الله خاصوي په خپل رحمت هغه څوک چې وغواړي او الله د لوی فضل خاوند دئ .

همدا راز الله تعالی د خپلو کارونو په باب داسې ویلي دي :

« لایُسئلُ عمّا یَفعلُ وهم یُسئلون » الانبیاء ۲۳ .

الله له هغه څه چې کوي نه پوښتل کیږي او دوی پوښتل کیږي .

تمت بالخیر

امین یارب العالمین

# مآخذ او مراجع


الف - تفاسیر :

- پښتو کابلی تفسیر .

- مختصر تفسیر ابن کثیر

- فی ظلال القرآن - سید قطب .

ب - احادیث :

- صحاح سته .

- مشکوة المصابیح .

- مرقاة المفاتیح .

ج - فقه :

هدایه .

- من الاحکام الفقهیة فی الفتاوی النسائیة - الشیخ محمد بن صالح العثیمین .

د - اسلامي نوری خپرونې :

- الزواج الاسلامی - طارق اسماعیل کاخیا .

- مسؤولیة المرأة المسلمة - عبدالله بن جابرالله بن ابراهیم جارالله

- المرأة المسلمة - الشیخ محمد بن صالح العثیمین .

- المرأة فی التشریع الاسلامی - احمد محمد جمال .

- التربیة الاسلامیة والمشکلات المعاصرة - عبدالرحمن لجلاوی .

- حقوق المرأة فی الإسلام مالها وماعلیها - عبدالخبیر الخولی .

- رفقا بالقواریر - احمد محمد جمال .

- توجیهات اسلامیة .

- الاولاد فی الاسلام - عبدالله ناصح علوان .

- مقام زن در اسلام وسایر ملتهای جهان - نشریه دارالتبلیغ اسلامی .




Series No: 78-

# The Rights of Women in Afghan Society

By

M. Gulab Bashar

The Writers Union of Free Afghanistan (WUFA)

Copies 2000
December: 1994




Reprinted by SCA with the permission of ABLE

دوهم چاپ: د افغانستان لپاره د سویډن د کمیټې لخوا
د (WUFA) په خوښه

د چاپ کال: ۱۳۷۸ هـ ش
د چاپ شمیر: ۱۰۰۰